محمد صدیق پسرلی



# سره غالی

د کتاب نوم : سره غالمه

لیکوال : محمّد صدیق "پسرلی"

د چاپ نېټه : لړم ، ۱۳٦۸

د چاپ شمېر :

خپرونکي : د ازاد افغانستان د لیکوالو ټولنه (وفا)

خطاط : نورالحبیب "نثار"

# ټوون

د افغانستان د ازادۍ د لارې د مظلوم شهيد ، عالم فاضل ، شاعر ، ليکوال ، فيلسوف او د ادب مايهٔ ناز مرحوم سيد بهاؤالدين مجروح له‌ درانه نامهٔ سره .

# د "سرې غالۍ" پرخنډ و

د افغانستان د اسلامي - ملي مقاومت او جهاد په سپېڅلو ځځو او مبارزو کې د سنګر د ګرمو شيبو د اتلولۍ ترڅنګ د قلمي، فرهنګي او ادبي جهاد او مقاومت وياړلې شيبې هم د هېرولو نه دي. د جهاد په دغه اړخ کې که يوازې د څو تنو نومونه د ځلېدونکو په عنوان اخېستل کېږي نو بې له شکه چې ښاغلی محمد صديق پسرلی به په لومړي کتار کې له لومړنيو ځلېدونکو څخه وي.

د ثور د غمیزې (تراژیدۍ) او د روسي يرغل په وړاندې د ادبي او قلمي جهاد دغه نوميالي شاعر او ليکوال له هماغه پيل څخه خپل ټول ژوند، او د ژوند هره لحظه دې مقدسې مبارزې ته وروبښله. په پيلامه کې يې د مقاومت د شاعرۍ هنګامې کړمې کړلې، د "سپېدو" له لارې يې د فرهنګي جهاد زمينې پراخې کړلې، په لنډو کيسو کې يې د اسلام او وطن د مجاهدينو د قهرمانيو تاريخي کارنامې په هنري - داستاني بڼه ثبت کړلې او دغه رازې په دې ډلابېلو برخو کې د ستاينې وړ هلې ځلې ترسره کړې.

"سره غالۍ" د ښاغلي محمد صديق پسرلي د لنډو کيسو دوهمه مجموعه

ده چې دا دی د آزاد افغانستان د لیکوالو د ټولنې (وفا) له خوا خپرېږي.

تر دې مجموعې د مخه د دغه د کیسو مجموعه د "داسې هم وو" تر سرلیک لاندې په ۱۳۶۴ هـ ش کال کې د "سپېدې" له خوا په (۱۵۵) مخونو کې چاپ شوې ده. په یاده شوې داستاني مجموعه کې د لیکوال (۱۳) لنډې کیسې راغلې دي.

په دغه دوهمه مجموعه "سره غلبله" کې د بناغلي لیکوال (۱۴) لنډې کیسې راټولې شوې دي. دغه کیسې د افغانستان د جهادي ادب د یوې ارزښتناکې داستاني پانګې په توګه نه یوازې دا چې په اوسنیو حساسو شیبو کې زیاتې ضروري دي بلکې د سبا نسلونو ته به هم د جهاد د بېلابېلو برخو، حالاتو او سرښندنو د ډېرې رښتینې داستاني نمونې وروسوي.

په دغو کیسو کې په اوسنیو حساسو تاریخي حالاتو کې د جهاد د تاریخي کارنامو او د پردیو یرغلګرو او د هغو د لاس پوڅو د ناکوبو د هنري داستاني ثبت تر څنګ د افغانستان د خلکو د رواني او اجتماعي اړخونو انعکاس هم په پراخه توګه را ترسترګو کېږي.

دغه لنډې کیسې به د افغانستان د جهاد د ادبیاتو په تاریخي بهیر کې خپل ځانګړی ځای ولري. که د خزان د اوسنیو لړو څادر د هېواد له ادبي فضا څخه ټولېږي، نو به یې هد اسې پسرلیني سرودونه او داستانونه په بهار وینو بدلوي.

په درنښت

د آزاد افغانستان د لیکوالو ټولنه (وفا)

# فهرست


د سرخبرې ۵

لوړې څوکې ............ ۸

اختیار د ملا بختیار ........ ۱۶

...خو د کمونستانو حساب بېل دے ! ...... ۲۶

خلیفه مراد ......... ۳۱

سره غالۍ ......... ۴۶

د عزت او آبرو دوړې ........ ۵۶

د صدر مېلمه ........ ۶۴

...چې چاته به یې دېرولې ؟ ........ ۷۷

د زړهٔ رنځوره ........ ۸۷

د خدای دلارې سړے ........ ۹۴

تنهاکي ........ ۱۰۱

وړه بشاپېرۍ ........ ۱۰۸

اپرچونست ........ ۱۱۸

د تاریخ کنده ........ ۱۲۴

بسم الله الرحمن الرحيم

# د سرخبرې

ويړو درنو او خوږو لوستونکيو !!

دا کيسې چې په دې مجموعه کښې لولئ زما د عمر د مختلفو دورو له تجاربو زيږيدلې دي . په ځينو کښې د افغانستان د اوسنۍ فاجعې څه ئيمګړي انځورونه د رينکاريدې شي او ځينې يې بيا جهادي داستانونه نه دي خو د افغانانو له سترګې ژوند سره به يې هرو مرو څه اړخ لګيږي .

دا مجموعه زما د لنډو داستانونو دويمه برخه ده . لومړنۍ مجموعه مې د "داسې هم وو" په نامه خپره شوې وه چې په هغې کښې هم څه اوسنۍ کيسې راغونډې کړې وې خو پخوانۍ . د دې يمې مجموعې ته مې هم په د غه دستور افسانې پرې ايښې دي . دا کار ما د دې لپاره کړے دے چې يوخو مې زړه غوښتل چې د خپل ژوند د هر وخت تاثرات مې په هره مجموعه کښې راغلي وي ، بله دا چې له يوې زمانې ، له يوې پيښې يا يوې الې کولې که هرڅو مره له مختلفو زاويو عکاسي وکړو بيا به هم هغه يوه کيسه وي او هغه يوه صحنه ؛ د لوستونکيو لپاره طبعاً ستومانونکې

وي .

دا چې دا افسانې يالنډې کيسې به کاميابې وي که نه، د نقادانو کار دے ، زه ليکونکے يم نقاد نه يم ، بلکې که ووايم چې نقاد هم په پردۍ اثر بنه نقد کولے شي بېځايه خبره به نه وي ؛ ځکه چې خپل عيب د وليو مخ د ے او پردے عيب د کلي مخ .

يوه ورځ په يوې تنقيدي غونډه کښې نه پوهېږم له محترمو نقادانو چا ويل : "افسانه د نثر غزل ده". دا خبره مې په زړه کښېناسته واقعاً چې منثوره غزل ده . لکه څرنګه چې غزل ډېر ويونکي ، ډېر اورېدونکي او ډېر نقادان لري د غه شان افسانه هم ده ؛ هر ليکونکے هغه کوي چې اقلاً يو څو افسانې وليکي او هر لوستونکے په مجلو او جرايدو کښې افسانه ډېره په شوق لولي او هر د نظر خاوند تر نورو سټروينو په لنډه کيسه ژر خپل نظر ښکاروي ؛ بل ورته والے يې دا هم دے چې افسانه هم د غزل غونډې ډېره لږ کاميابېدے شي . لکه څرنګه چې له لس کونو زرو غزلو تر اوسه پورې ايله په سلګونو غزلې کاميابې ګڼل کېدے شي د غه شان افسانه هم ده؛ دا تر اوسه په سلګونو ليکلې شوې او خپرې شوې افسانې چې د زمانې له غلبيله وو تې خداى خبر دے چې له دې جملې به څو افسانې پاتې شي ؟

نو نه پوهېږم چې زما له افسانو به هم کومه يوه پاتې شي که څرنګه ؟ په هر حال ما له ضايع کېدلو وژغورلې ، دا ځکه چې په دغو کيسو کښې زما تجربې ، زما درك ، زما احساس او بلکې زما د ژوند خوږې او ترخې لمحې ځان ښکاروي .

په پای کښې د ازاد افغانستان د لیکوالو د ټولنې نه ډېر مشکور یم چې زما دا څو افسانې یې له ورکېدلو وژغورلې او د چاپ تکلیف او مصرف یې په ځان وګاله .

نور به د محترمو لوستونکیو وخت نه نیسم ؛ په د رناوی .

محمّد صدیق پسرلی

# لوېږ ځوکې

خوښي هم لکه غم په سرې خوب ودروي ؛ د رسته شپه یې د تېرې ورځې د برې په خبرو روښه تېره کړې وه . خصوصاً مومن خان بېخي په جاموکښې نه ځایېده ، چې هرځل به یې خپل کلاشنکوف په لاس کښې واړاوه راواړوه ، بیا به یې له سره د تېرې ورځې کیسه راواخیستله چې څرنګه یې په تش لاس د دښمن له ماتـ شوي لښکرڅخه ولجه کړ !

مومن خان د جهاد ډېر شوقي ؤ ، دا څو میاشتې له مجاهدینو سره په تش لاس ملګرے ؤ ؛ سرګروپ به ورته ویل چې کله د الله ځل خدائ فتحه راپه برخه کړه او وسله په لاس راغله یو ښه توپك به درکوم، خو ته یې تر هغه وخته په استعمال ځان پوه کړه .

مومن خان له خپلو ملګریو د مختلفو وسلو د استعمال طریقې زده کړې وې ، خو کلاشنکوف یې ځکه ډېرخوښ ؤ چې ټخنېې ته یې ضرورت نه ؤ ؛ دا کله هم ټخنېې نه وې ویشتلې ، د ضربې فیر یې خوښیده .

مومن خان به په قرارګاه کښې د مجاهدینو خدمت کاوه ، چې مجاهدین به د کومې حملې په نیت ووتل د ے به یې پرېښود ، په

دهٔ به د تش لاس لهٔ امله تر مېږو وروسته کيدل او د دوی برې نه دوعا کولې ډېر سخت تېريدل ، پهٔ کرانه به يې وخت اراوهٔ ، چې کله به يې ملګرې پهٔ خير او بريالی راوګرځيدل او هر يوهٔ به د خپلو کارنامو کيسې کولې ، دهٔ به د حقارت احساس کاوهٔ او د شرم خولې به پرې راماتې شوې ، چې کله به د دوی دپاسه د غليم الوتکې تېريدې ، دهٔ به بې اختياره نارې کړې :

ـ غورېږهٔ غورېږهٔ !! غوريدے شئ ! بنهٔ پوهېږهٔ چې بله وسله نهٔ لرم او د مچلوغزې ډېره مې نهٔ دررسېږی ؛ ارمان چې د نورو د مېړو جنګ وے او ارمان چې د مچلوغزې ګاټي دررسيدے . . . .

تېره ورځ چې بيا ملګری دغليم د کاروان مخې ته ورتلل دهٔ ته سرکرټ ويلی وو چې ځای وساته ؛ خو دهٔ داځل پهٔ ټينګه پټيلې وه چې "يا مړ يا موړ ، يا جګ پهٔ غوايی سپور" لهٔ شا ورپسې روان شو جبهونه يې لهٔ تيږو ډک کړې او مچلوغزه يې تياره پهٔ لاس کښې نيولې وه . چې جنګ ولګيد دهٔ هم ځان د يوهٔ زاړهٔ دېوال شاته رسولے ؤ کوم چې د کاروان پهٔ مخوس شيبېتهٔ متری کښې ولاړ وهٔ ، څهٔ شيبه وروسته چې دوه درې ټينکونه او څو ترکونه واوښتل کاروان پهٔ شا وتمبيدهٔ او د روسانو مرې پهٔ ميدان پاته شول ؛ پهٔ دې فرصت کښې يوهٔ روسی عسکر چې دهٔ ته يې نږدې مورچه نيولې وه پخپلو ملګرو پسې منډه واخيستله ، مومن خان مچلوغزه تر سر تاو کړه او د الله اکبر لهٔ نارې سره يې تيږه د هغهٔ روسی

په خوا وروشغوله ، اتفاقاً تیږه د روسی په ښخت ولګیده او پړمخ ولوید ؛ مومن خان هم فوراً ورمنډه کړه، چې په یوه غټ ګاڼی یې پر سر ووېشته، کلاشنکوف یې ترې کوټو ته کړ .

د مومن خان د خوشالیو اندازه نه لګیده ، هم یې د زړه مراد (کلاشنکوف) موندلی ؤ ، هم یې توره کړې وه او د چا احسان نه و وربانده ؛ ځکه یې هغه شپه تر هریوه ډېر خندل او د سخت ساعت خوږې خبرې یې بیا بیا کولې .

سهار چې د لمر شغلو د تیارې تور پلو د نړۍ له مخه پورته کړ مجاهدینو ته ښکاره شوه چې په شپه شپه کښې د سرو لښکرو له خوا محاصره شوي دي . قوماندان د رسټو ته لارښونه وکړه چې یو له بله لرې مورچه ونیسی او تر وسه وسه دې بې ضرورته ډزې هم نه کوی څو وکولی شو چې تر بیا مابنامه ځانونه وساتو ؛ مومن ته یې په خاص طور ووېل چې هلکه بې احتیاطی مه کوه !

څه شیبه وروسته قرارګاه له ځمکې او له فضا نه تر سختو ډزو لاندې ونیوله شوه . د وی که له یوې خوا له الوتکو ډېره ستړکه کوله خو له بله پلوه یې تر ډېره حده په ګټه هم تمامیدې ؛ ځکه د دوی موقعیت داسې ځای ؤ چې بمونه به پرې وورېدل ډېر ګاڼی به یې لاندې ورغړول چې د هغو له وېرې به د محاصرې تنګه شوې کړۍ بېرته ارته شوه ؛ د وی صرف ځانونه ساتل .

ورځ په ډز و ډوز تېره شوه ، د ډېرو لرغونو زمانو راهیسته په ځای ناستې تېرې د غرو له غېږې جلا شوې ، لاندې کوټکوټو او

لمنو ته ورغښتې خو يو روسې هم په دې موفق نه شو چې د عقابانو ځالې ته ورو خېژي . مجاهدين هر يو پخپل مورچل کښې لکه له غره سره نښتې پرشه ارام پراته وو . د شپې په تياره کښې چې الوتکې پخپلو لرې او نژدې ميدانونو کښې کښېناستې روسانو هم له ډزو لاس واخيست ؛ په غره کښې چوپه چوپيا خوره شوه تا به ويل چې هيڅ هم نه وو پيښ شوي .

سرګروپ خپل ملګري يو يو راټول کړل چې مشوره وکړي ، درست ملګري روغ جوړ وو ، صرف مومن خان په پښه زخمي ؤ ، خو چې پښه يې ورته وکتل بلا وه برکت يې نه ؤ ، په پښه کښې لګيدلې وه پښه يې وروتړله چې نوره وينه ضايع نه کړي ؛ خو البته نه طبي وسايل موجود وو نه فني شخص ، په هغه عادي توګه لکه څرنګه چې نور کليوال علاج کوي .

سرګروپ خپلو ملګريو ته وويل :

ـ نن مو وليدل چې ډير پوځ ترمونږ تاسو راګرځيدلې دې ، سبا ته ممکن دا قوه نوره هم تقويه شي ، په لويه تنده او لږو وسايلو به تر کله مقابله وکړے شو ؟ . . . اوس لا شپه ده د تيارې تر پلو لاندې که ځانونه وباسو ايستلي به مو وي که نه د ورځې په مخه هيڅ امکان نشته .

يوه مجاهد ورته وويل :

ـ که په شپه کښې مونږ نه ورښکاريږو د وي هم نه شو ليدلې نو د ورځې او شپې توپير به څه وي ؟!

قوماندان وویل :

ـ دا ربنتیا وایې، خو د ورځې چې ما له نسبتاً لوړ ځایه څار کاوه د ومره راته معلومه شوه چې له دریو خواو محاصره یو، صرف د غرۀ خوا راته خلاصه ده ؛ که موږ په غرۀ ورلك شو، ممکن په غرۀ واوړو .

بل مجاهد وویل :

ـ موږ په داسې ځای کښې واقع یو چې غرۀ ته ختل هم لوبه نه ده په نېغو کمرونو به څرنګه ورخېژو ، هغه هم په توره تروږمه کښې؟ . . .

قوماندان وویل :

ـ متل دے چې وایي که غر لوړ دے سر ته یې لار شته ؛ موږ تاسو هم د غرو بچي یو او وچ مجبوریت هم لرو ، څه د خوابښې کره نه ځو چې خوف وخطر ته اهمیت ورکړو !

بل مجاهد وویل :

ـ دلته لنډه یوه نرۍ لاره شته ، د ورځې مې لیدلې وه ؛ ګونډې د شپې یې هم ومومو .

قوماندان وویل :

ـ پښو ته لاس تر زنې ناستې نه دے پکار ؛ تر وروستنۍ سلګۍ باید له امکاناتو کښته واخلو .

بل مجاهد وویل :

ـ موږ خو به په خاپوړیو هم ورواوړو خو دا مومن خان به

څه کوو چې نه په ولاړه تللې شی نه په خاپوړیو ، نه لار داسې لار ده چې په شا یې کړو .

قوماندان وویل :

ــ مومن خان زموږ هم وزر دے ، په میدان یې نه شو پرېښودلے ترکومه حده چې توان لرو وابه یې خلو ، که یې په کوم ځای کښې د خېژولو امکان نه ؤ ، موږ تاسو به هم هلته سنګر ونیسو .

دا خبره د رستو ملګریو خوښه کړه ، خو مومن خان وویل :

ــ اول خو تاسو ما ته مه ګورئ ، که بنه کوئ ځانونه باسئ . بله دا چې زۀ له دې ځایه خوځیدل نه غواړم ، چې په مچلوغزه مې د کلاشنکوف د خاوند ماغزه وروتوښپل اوس خو لا روغ کلاشنکوف په ګوتو راغلے دے ، که ورځ نه وه ګرځیدلې په دېرو به میندې بورې کړم ؛ بیا که مړ شوم ارمان به نه وی .

دوی ورته وویل :

ــ مومن خانه ! تا یوا ځې نه شو پرېښودلے ، تا به راسره اخلو چې دېر برے دې په برخه شی او د دېرو سرونه په خاورو ولړې .

مومن خان وویل :

ــ بیا به داسې موقع چیرې وی چې زۀ یې د پاسه ولم او دوی رالاندې وی ؟ . . .

قوماندان وویل :

ــ که ژوندے وې چې خو روسان زموږ په خاوره کښې پراته وی

ترهغه به مو ورسره دغه حال وي ؛ وخت مه ضايع کوه .

مومن خان وویل :

ــ مونږ چې به غنم کرل روغې دانې به مو په دې تمه ترخاوړو لاندې کولې چې راشنې شي ، وبوټېږي ، وږي راوړي او بيوپه څو حاصل ترې واخلو ؛ نو اوس هم په دغه تمه پاتې کېږم چې که لس شل تنه غليمان ترڅان د مخه کړے شم ما به هېڅ تاوان نه وي کړے .

قوماندان وویل :

ــ نو په دې حساب خو زمونږ لاسونه هم چا ترشا نه دي راتړلي که هريو لس لس تنه دوزخ ته ولېږو ، روغ لښکر به مو له منځه وړے وي .

درستو ملګريو وويل :

ــ توکل په خدای ، نه څو او خپل سرونه په دغه اميد شندو ګوندې ښه ثمر ترې واخېستل شي .

په دې امنا قوماندان په شپه شپه کښې د درستو ملګريو مورچلونه په مناسبو ځايونو کښې وټاکل او د سبا په انتظار هريو پخپل سنګر کښې کښېناست .

چې بيا لمر د دې خونېنې صحنې په ننداري پسې سر راهسک کړ ، د توپونو او راکټونو ډزې پيل شوې او روسي قواو وړاندې تګ شروع کړ ؛ څرنګه چې دا ځل قوماندان د شديدې مقابلې امر کړے وُ ، له پاسه يې جاغورونه پرې تش کړل چې اتفاقاً ډېر زيات روسان

پخپلو وینو کښې ورغښتل .

د لس لس نیمو بجو شا وخوا د ښمن ته د پهٔ شاکیدو بولله ورکړے شوه ، پهٔ لنډ فرصت کښې د مات شوی لښکر د وړې هم کښېناستې ؛ قوماندان خپل ملګری وروبلل ، درست روغ جوړ وو خو د مومن خان پته نهٔ ولګیده ، چې لږ څهٔ وروسته وګرځیدل مومن خان یې پخپل سنګر کښې پهٔ وینو غرق ولید ؛ لهٔ ډکو جاغورونو یې داسې معلومیده چې پهٔ لومړنیو ډزو کښې لګیدلے او شهید شوے وُ .

قوماندان ووېل :

ــ رښتیا چې لوړې څوکې پهٔ لوړ همت ساتل کېږی او دا هم حقیقت دے چې یې لوته قربانی ډېر ثمر ورکوی !

# اختیار د ملا بختیار

مازیگر چې لمر په لویدو ؤ او د پلوشو پسنې له ځځکې ختلې "سمندر" د افکارو په توفانی سمندر کښې لاهو زړهٔ یې نرهٔ د کور په لور روان ؤ . د ورځې سود سودا چې به یې شمېرله او په مقابل کښې هغه لوړې ضرورتونه نو د دویمې درجې ضرورياتو ته څه نهٔ ورپاتېدل ، بلکې د کور د خاوند د کرایې حساب لا په ځای پاتېدهٔ چې نن بیا باید ورته یوه پلمه جوړه کړي .

"سمندر" پوخ ځوان ؤ . له هیڅ کاره یې غاړه نهٔ غړوله درست عمر یې په کارکسب کښې تېر کړے ؤ ؛ هغه وخت چې د ملك پښتي خاوند او په قوم قبیله کښې د ښمې سرے هم ؤ دے چا بېکاره نهٔ ؤ لیدلے ، له بېکاره یې خدای بېزاره لید . اوس چې غربت خپلو لاس و پښو ته اړ کړے ؤ ، د خولو بهول د اوښکو تر څڅولو او د آبرو تر تویولو په مراتبو ورته ښهٔ ښکارید . چې سهار به له کوره ووت له کلیوالو سره به یې لېږ لیدل ، ځکه چې دهٔ ته د ناستې ولاړې او دود بایدهٔ فرصت

په لاس نه ؤ ورغلے .

ده پخپل وطن کښې د ولسم جومات پاس کړے ؤ ، علاوتاً د ښې مطالعې خاوند ؤ خو دلته هغه تعلیم او مطالعه په ښه نه ورتلل . نور یې په زمینداره او باغداره کښې تجربه لرله چې دا تجربه هم دلته بې ثمره وه ، بل کسب یې نه ؤ زده مجبور ؤ چې ختې وکړي . د ختو زور په ښار کښې ؤ خو په ښار کښې د کور کرایه له وسه وتلې خبره وه . چاره یې نه وه ، هره ورځ به یې د غه څو میله لاره پخپلو پښو وهله را وهله .

په هغه ورځ یې د کور ضروریات ډیر وو او له کاره یې هغه د هرې ورځې په شان اجوره لاس ته ورورېې وه ، ترینیایې لارې یې په ضرورتونو کښې اشد ضروریات جلا کول چې لومړے د هغو چاره وکړي خو چې له هرې خوا به یې حساب ولګاوه او د خرځ لکے به یې له هرې خوا وکچله د غه یوه لوېشت راتله ژوند یې درست د احتیاج او فوري نیمګړتیاؤ نه ډک ؤ چې پوره کیدل یې ناممکن لیدل .

کارغانو د ورځې له تلاشه لاس اخیستے او سیل سیل د خپلو ځالو په لوري الوتل . "سمندر" چې پورته ورته وکتل ودرېد او د دوی فارغ البالد الوتا او په ډاډه زړه کاغ کاغ ته متوجه شو له ځانه سره یې وویل : خوشبختي یعني د غه ؛ کار یې ازاد تلاش یې ازاد ، تله راتله یې ازاد او ژوند ژواك یې ازاد دے . د خدای بختور په هیڅ حلقه کښې نه دی تړلی ؛ نه د قانون په لومه

کښې ، نه د سیاست په جال کښې ، نه د دوړ دستور په قفس کښې ایسار دی . خومره بختور دی چې چېرته بنه وی هلته یې شپه وی . نه حلال و حرام د دوی د تلاش مخه نیسی ، نه قانون او مقررات ، نه پانګه پېژنی ، نه فقر او نېستی ، نه له لیډرانو او لیډرشپ سره اشنایي لری ، نه د سیاست په رنځ اخته او د حزبونو په تعصب مبتلا . . . .

د اندېښنو ځپو بېرته په شا وتمباوه ، تېر کلونه یې ورپه زړه کړل چې د سرای لویه دروازه به یې پېژندویو او ناپېژندویو میلمنو ته تر نیمو شپو خلاصه ولاړه وه چې په غلو دانو به یې د کندوانو زېرونه وره کیدل چې د محتاجانو به ښه ورسره کیده او څو کورونه یې پخپل خرخ جوړ کړی او یې کرایې به پکښې د لرې سیمو راپرېښو شوی پراته وو . . . .

هغه وختونه یې سترګو ته ودرېدل چې پخپل ملک یتي کښې به یې چکر واهه او د خپلو ونو اضافه څانګې به یې پرې کولې نه د چاوربانديې احسان ؤ ، نه چاته اړ . . . ورځنۍ مایحتاج یې پوره ؤ او د ډېرو لومړنۍ ضروریات به یې د احسان په غریزه ورپوره کول . . . .

چې بېرته اوسنۍ حال ورپه زړه شو بیورته یې وکتل ، ورسرتنی کارغه سترګې وزرونه ټپول او . . . بیا یې وویل : ورځه بختوره ورځه!! نه دې د لوړ پوړي زور شوی ، نه به دې د زوی پښې ایبلې وی ، نه کښېږه په روپیو مړوې ، نه دې په تلو راتلو څه

بندېز لګيدلے دے . ورځه ! په خپله خړه سپېره ځاله کښې به د
ارامۍ شپه تېره کړې ، سبا ته بيا خداى باچا دے ، نه درپسې
د برق محصول راځى نه د کور کرايه ، نه دوا پېژنې نه ډاکټر..
ژوند دې هم طبيعى دے او مرګ دې هم .

له ځانه سره يې دا په ټينګه وپتيله چې نور له دې سترې زندګۍ
ځان اسوده کړى ، تردې بدې ورځې چې هره ورځ يې دوه سوه
درواغو ته مجبوروى د ځنکدن څو ملتيه سختۍ ډېره اسانه ده
هره ورځ مجبور دے لور ته يوه تسلى ورکړى او زوى ته بله دوکه
ښځه په يوه خبره تېرباسى او د کور مالک په بله وعده؛ دا وعدې او دا
پلمې به ترکله جوړوى او ترڅو به چليږى ؟؟...

له ځانه سره يې دا فيصله وکړه چې د نن خرڅ ورورى او په
وروستيو درواغو د کور غړى ارام کړى ، نيمه شپه به پاڅيږى
او د ريل مخې ته به د حسرتونو او محروميتونو د ورې له ځانه
څنډى . د ژوند د بې نتيجې مزلونو سترى دا غوره کړه
چې د شپې په تيارهٔ کښې د سترې اوږ ګاډى پښو ته پرېوځى.
د غې فيصلې يې د ژوند درانهٔ پېټى درست له اوږو اخېستى وو
چې بيا يې پورته وکتل وروستنى کارغهٔ لا وزرونه ټپول ، ده
وويل : لږ وخت پاته دے چې زهٔ هم وزر وکړم ، والوزم او
له دې سترى عالمه پورته والوزم؛ هلته چې نه ياس وى نه
محروميت ، نه هستى وى نه نيستى ، نه آداب وى نه رسوم
نه مسئوليت وى نه مجبوريت ؛ هلته چې په خپله خوښه

ځم راځم ، په خپله اراده لټېږم او کښېنم . . . .

سمندرخان ډېر مطمین ګامونه اخېستل ، داسې ډاډه روان ؤ ، تا به ویل چې لویه مسابقه یې ګټلې ده . په دغه وخت کښې چا وربانديې ږغ وکړ : سمندرخانه ! سمندرخانه ! څرنګه داسې روان یې ؟ په اسمانونو کښې چکر وهې چې موږ د ځمکې په سر ښویېدونکې مخلوق ښېخې وینې نه ؟! . . .

سمندرخان چې شاته وکتل ، خپل د ښو او بدو ورځو یار یې ولید ، چې غېږ یې ورکړه ورته وې ویل : ته رښتیا وایې ، زه سر له ننه له هر شي ځان وارسته ګڼم . دغه تصور مې دومره هډونه راته سپك کړي دي چې واقعاً د اسمانونو چکرې وهم دنیا او د دنیا ژوند لکه تمبولې داسې دے چې څومره پکښې خوځېږې هومره به پکښې ښخېږې . زه له دې تمبولې وتل غواړم ، د بې نیازۍ په قدرت او د استغنا په زور .

— هغه وویل : زه پوهېږم ، پوند نه یم چې تا نه وینم او ستا ژوند ژواك نه شم درك کولے . وایي :

کورې د غم په چیغه وران شه

چې په غمژن د کېږدن ګومان کوینه

— ستا بې نیازي ستا له محرومیتونو سرچینه اخلي ، دا د بدمرغیو د فشار اخرنے حد دے چې په یوه سپېڅلې استغنا بدلیږي . د نړۍ ډېر یاد کسان او وارسته خلك له کبره نه وو لېوني ، بلکې ستا په شان د مجبوریتونو امواجو د وارستګۍ ساحل

ته ایستلی دی خو کله کله بیا په بده هم اوړی او سړے د جنایتونو یا انتحار په خوا ولمسوی.

ــ سمندرخان وویل : له جنایته مو دې خدای وساتی او هغه وس دې خدای نه راکوی چې مېړے په رانه ازار موهی. پاته شوه د خودکشی مسئله، دا به زما په خیال د مایوسیو له ترټخوالی ناخبر ولس پخپل نفس ظلم کړی، چې خبر وی بنیادې هغه یې په ځان ترحم وبولی.

ــ هغه وویل : انتحار ته هغه څوك مجبورېږی چې په ژوند کښې ماتې وخوری او له پست همتی نه دغه ماتې ومنی، دا د پستو او پرېوتیو خلکو کار دے.

ــ ده وویل : د ژوند نه که ووایم مونږ تاسو ټولو ماتې خوړلې ده چې نه یې منو دا بېله خبره ده خو زما په خیال په خپلې کمزورۍ او ماتې اعتراف کول باید شجاعت وبولو نه پستی.

ــ هغه وویل : البته که د چا مرګ د نورو د خوښۍ موجب ګرځی، زه هم په دغه عقیده یم "که مرګش به از زندګانی بود" خو مونږ تاسو د ځان واك نه لرو. له مذهبی او عقیدوی نګاه یې لاڅه کوې چې جرم دے له اخلاقی نګاه ورته وګوره، ولې دې یو نېك بنیادم کم شی؟ ولې دې جهان ظالمانو او جنایتکارانو ته خوشې شی؟ ولې دې د بشریت د اصلاح تلاش او له بدمرغیو سره مبارزه پای ته ورسیږی؟ . . . علاوتاً مونږ تاسو خپل لرو، خپلوان لرو، ښځه، لوڼې، زامن او صمیمی دوستان

لرو؛ ولې د هغوی په زړونو د مرهم په ځای داغونه کېږدو؟ او ولې یو شمېر بې سرپرسته ماشومان د نورو په مرغیو لمنې ته وروغورځوو ؟ موږ مسئولیت لرو . . . .

سمندرخان سوچ واخیست ، له څه شیبې سکوته وروسته یې وویل : زما ورزونه دې لکه چې بیا راوتړل ؟ نه غواړې چې د مرغانو په ټول کښې د دوی غوندې ازاد والوزم ؟ . . .

ــ هغه وویل : څه کوې لکه چې تا هم د خودکشۍ بندوبست کړې و ؟!

ــ ده وویل : د غسې یې بوله .

ــ هغه وویل : ماته ستا مشکلات معلوم دي ، پوهېږم چې د ورځې په لس د ولس روپیو د سړي یوه خوا هم نه پوره کېږي او بیا نن سبا چې هوا مخ په سړېدو ده هغه لس دولس هم تل سړي ته په لاس نه ورځي ؛ په دغه حساب زه نن په تا پسې راغلم چې د ژوند ژواك چاره دې وکړو .

سمندرخان چې د خپل وران ژوند هیڅ چاره نه لیده ، اریان دریان یې ورته کتل او هیڅ یې نه ویل .

ــ هغه وویل : زه ستا اخلاص او صمیمیت هېڅکله نه شم هېرولے ، هر وخت به ستا په فکر کښې وم خو خالي لاس د ښمن دے ، سړے به په تش لاس څه وکړے شي ؟ د خولې تسلي ګاڼې او په ژبه خیټه مې هم نه خوښېږي ځکه مې تر اوسه ځان ناګاره اړولے ؤ . اوس چې مې لاس خولې ته رسېږي نا ته راغلم که راسره





ویې منې هیله ده چې ژوند دې ښه شي .

څه شیبه یې انتظار ویوست چې د سمندرخان عکس العمل وویني خو هغه داسې مضمحل شوی ؤ چې له تیږي غبرګ راخوت له ده نه راخوت ؛ نو ر د ده په "هو" او "نه" پسې نه وګوځېد ، ویې ویل :

— سمندرخانه ! تا ته معلومه ده چې زه هم یو سر دوه غوږه راغلم او بیا مې کډه او ماشومان په یوه یوه جوړ جاموکښې راوویتل ، که لږ وو که ډېر هرڅه رانه پاته شول ، تر اوسه مې کله په یوه شي او کله په بل شي ګذاره وکړه ؛ هغه هم څه ډېر ګذاره چې که بل ته نه وي معلومه ته به یې ښه درک کولی شې . نو ما ویل چې یو خوار به بل خوار ته څه لاس ورکړی شي ؟ . . . د تېر وخت ګیله مه کوه . نن ځان مکلف ګڼم چې ستا لاس ونیسم او د بد مرغۍ له تمبولي دې راوباسم .

سمندرخان بیا هم څه نه وویل .

— هغه وویل : نن سبا د ژمي مخه ده تر هر شي بوټو ته ډېر ضرورت دی ، ما څوک پېژندوي او بلد سړی راسره ملګری کړی دی ، په باغونو کښې لرګي اخلو او دلته یې په ښار کښې خرڅوو ، ښې پیسې په لاس راځي ، دا یوه یوه نیمه میاشت په دغه کار مشغول یو ، او س دوه درې زره روپۍ سرمایه لرم ، که دې خوښه وه نو یوه دوه ښه یو ، تر دوو درې ښه یو ؛ ستا برخه وېډه به هم زه واچوم ، سر له سبا

به ته هم راسره شريك شي كه ورځ نه وه ګرځيدلي د خودکشي له فکره به دې وباسي .

سمندرخان ورته وويل : ياره له ما څخه خو بېخي روګودر ورك دے ، په هيڅ هم نه پوهېږم چې چېرته مې بيايې اوځه راته ښيې ستا په واك کښې به يم ؛ ما مه پوښته ، اختيار د ملا بختيار دے خو . . . .

— هغه وويل : چې داسې ده نو تا ته ضرورت نشته ، اوس دا سل روپۍ در واخله چې فوري ضرورت دې رفعه شي ، سبا اته بجې به د "ګنج" په دروازه کښې ستا لار ګورم .

سبا چې بيا كارغان په شور او په زوږ د دانې په تلاش راوتلي وو سمندرخان هم د دانې په تلاش پسې راووت خو داخل يې كارغانو ته هغسې په حسرت نه كتل . بېګېنۍ تصميم وريه زړه شو ، خپل سريې د ربل په بې پروا پښو كښې يوې خوا ته او خپله په وينو لړژنده تنه يې بله خوا ليدله ، خپل ښازولي ماشومان يې بې كسه او بې سرپرسته د كليو كوڅو آواره ليدل ، وربېږديده او لكه څوك چې له وهمژن خوب څخه راويښ شي وارخطا وارخطا يې يوه خوا بله خوا وكتل ، متيقين شو چې هسې تصور ؤ ، له ځانه سره يې وويل : رښتيا چې د بشر بدمرغي اكثر د بشر د لاسه ده او د بشرى ټولنې وحشيانه سلطې او ظالمانه دستورات يې مخ ته راوړي دي او نيك مرغي هم د بشر په واك كښې ده چې بشرى همدردي او انساني خواخوږي

وده وکړی . یقیناً ډېرې بدمرغۍ به لمن ورټوله کړی او نړۍ به د بناپېریو په بڼ بدله شی .

# خو دکمونستانو حساب بېل دی

زمونږ دو یمه شپه وه چې په نه کړې جرم د داخله وزارت په یوه خونه کښې د نورو بې گناه زړو زلمیانو په لړکښې د مجهول سرنوشت په انتظار پراته وو - ورخلاص شو او یو تن بل هم د وو تنو پولیسانو تر منځو نیولے او زمونږ په خونه کښې یې پرېښودهٔ .

مونږ به په یوه خونه کښې شل د وه ویشت تنه وو چې د چا لرې ورځې تېرې شوې وې د چا وړې ، تر دې نوی مېلمه د مخه مونږ د وه درې تنه چې د یوهٔ کالهٔ خلک وو نورو ته تازه ښکار شوی ښکاریدو خو چې دے یې را وست مونږ هم د کوربـنو حیثیت غوره کړ .

بندیان که څهٔ هم هریو پخپلو خولو کښې ډوب وی بیا هم یو په بل ډېر خوږېږی ، څومره چې دې په جېل کښې ځان ته پام وی هومره به دې په بل هم خوا بدېږی که څهٔ هم په هېڅ رنگ نهٔ وی درخپل او کله دې په یوهٔ جومات کښې ټمپـه

هم نهٔ وی ورته وهلې .

نوی مېلمه یو لهٔ وجوده ضعیف ، سپین پوستی او مرتب سړی ؤ . پهٔ درېشئ برسېره یې د ډاکټرۍ سپین کوټ هم اغوستی ؤ چې زمونږ پهٔ لومړنۍ دیدن وربانديې د ډاکټر کومان راغی چې پوښتنه مو وکړه ربښتیا وه ؛ دی د جراحۍ ډاکټر ؤ او لهٔ معاینه خانې یې راوستی ؤ .

ډاکټر صاحب چې متاسفانه نوم یې رانه هېر دی د "لوګر" اوسیدونکی ؤ ، پهٔ دې تور یې نیولی وهٔ چې ګواکې دی د مجاهدینو معالجه کوی او پهٔ غیر قانونی توګه (!) د زخمیانو پهٔ پرهرونو مرهم پټئ ږدی .

ډاکټر صاحب چې هسې هم یو ضعیف البنیه سړی وهٔ او لهٔ ډېره وخته د بډوګو پهٔ مرض مبتلا وهٔ او د یوهٔ بډوګی اپرېشن یې هم شوی ؤ . علاوه پر دې یې د وینې فشار هم جګ وهٔ خو کمونستی دولت د دهٔ مرضونه پهٔ مرضونو نهٔ شمېرل چې راوستی یې وهٔ نېغ یې د "اکسا" قصابخانې ته بېولی او هلته یې پهٔ مختلفو شکنجو او شارټونو لهٔ لاد و باد و ایستلی وهٔ .

ډاکټر صاحب چې راوستل شو تر ډېره وخته یې لهٔ خولې خبره نهٔ وتله ، سر وربانديې دروند وهٔ ، د یوې ماتې چوکۍ پهٔ دره یې سر ولګاوهٔ ؛ ښهٔ ؤ ما لهٔ ځانه سره پټو راوړی وهٔ ، هغه مې ونغښت او د دهٔ سر مې وربانديې کېښود .

ماسخوتن چې موظف ډاکټر زمونږ د بیابیا غوښتنې پهٔ

اثر راغئ او د دهٔ فشار یې وکوت ، څهٔ دوا یې ورته ولیکله ډاکټرصاحب چې نسخه ولوستله ، ورته ویې ویل : لطفاً زما لپاره دا دوا مهٔ لیکئ چې هیڅ ګټه نهٔ راته کوی ، زهٔ فعلاً علاوه پر فشار د پښتورګیو لهٔ شدیده درده ډیر پهٔ عذاب یم . . . . څرنګه چې دا ډیر وخت پهٔ دې رنځونو اخته یم او ډیره تداوی مې کړې ده ما ته نسبتاً مفیدې دواګانې معلومې دی ، برسیره پردې زهٔ هم ډاکټر یم کهٔ هرڅو درته مجرم ښکاریږم اقلاً د هم مسلکۍ پهٔ لحاظ راته داسې یوڅهٔ ولیکه چې ترسهاره خو وربانديې ارام یم او دا نور ورونه مې راسره پکو نهٔ شی . . . .

موظف ډاکټر پهٔ ډیر کاوې ورته وویل : تهٔ نهٔ ډاکټر یې او نهٔ رنځور ، بلکې د اشرارو مل او یو غدار بنیادم یې دومره دوا هم دربانديې حیف ده چې ومې لیکله .

ډاکټرصاحب ورته وویل : کهٔ دا لهٔ زړهٔ وایې نو یوه داسې دوا راته تجویز کړه چې تاسو زما لهٔ شره خلاص کړی او ما د ژوند لهٔ ستونزو .

موظف ډاکټر بد بد ورته وکتل او چې روان شو ویې ویل: زهٔ وایم چې مرګ ته دې ستړګې ووځی تهٔ د ارام خوب غواړې .

رنځور ډاکټر ډیر متاثر شو . څهٔ شیبه وروسته ما تسلي ورکړه چې تهٔ خوا مه بدوه ، خدای مهربان ذات دے .

— دهٔ راته وویل : بیشکه چې خدای لرو او هغه ډیر مهربان

دے ، په دې کښې به هم د خدای پاک د رحم څهٔ اسرار وی چې موږ يې نهٔ شو تشخیصولے، خو بنیادم ډېر کمزورے دے ، ځینې خبرې سړے ډېر مایوس کړی . مثلاً : زهٔ یې دا دے په دې رنځور حال کښې لهٔ معاینه خانې راوستم ، کور به مې خبر نهٔ وی چې څهٔ بلا وخوړم ؟ د وهلو ټکولو او مختلفو شکنجو یې راباندې څهٔ چوسه نهٔ وکړه ، دا هرڅهٔ راباندې تېر شول او د ډېرو شکنجو په انتظار یې لا دا دے ګورې چې ساتلے یم خو یوه شکنجه هم دومره درد ونکې نهٔ وه لکه د دې موظف ډاکټر د غه رویه .

ـ ما ورته ووېل : لهٔ یوهٔ غلامه او لهٔ خدایه منکر بنیادم څخه څهٔ ګیله کوې ؟

چې شپه پخه شوه ، نور ملګرې اکثر په درانهٔ خوب ویدهٔ وو ، صرف د ډاکټر زګېروے وُ او زهٔ ورته په غمونو کښې ډوب ناست وم چې لهٔ مخامخ کوټې ډېرې بدې چیغې واورېدل شوې ، د رستو ملګریو سرونه راجګ کړل ، پته یې نهٔ معلومیدهٔ چې کیسه څهٔ ده ؟ بیا یې څوک د خدای پرستۍ په جرم نیولے دے ؟

د رسته شپه به په هرو لسو پنځلسو ملټو کښې هغه چیغې تکراریدې ، سهار ته ایله زموږ یوهٔ ملګرې ته کوم یوهٔ دوست حال ویلے وهٔ چې بېګاه شپه د ډاکټر "زرغون" تحقیقات وو .

ډاکتر زرغون يو مشهور کمونست ؤ چې درست عمر يې د کمونزم لپاره هلې ځلې کړې او د ومره پکښې ځليدلے وهٔ چې نن پرونه به دوی د ډاکتر زرغون پهٔ ملګرتوب او فعاليت فخر کاوهٔ خو نن يې دا حال ؤ .

— ما ډاکتر ته وويل : رښتيا خبره ده چې سپږه هم د سپي غوښه نهٔ خوری خو د کمونستانو حساب بېل دے !

۱، ۲، ۱۳۵۹

# خلیفه مراد

ډمان یا په اعزازی نامه سلمانیان هسې هم خبرو ته تږی ناست وی خو خلیفه مراد بېخي د خبرو ګوډی وُ چې سر به دې لا نه وُ ورته نیولی ده به بیا د یوې کیسې فیته ایښې وه تر بیاتی یې ژبه تېره وه او تر ماشین به یې خوله ډېره خوځېدهٔ.

ممکن ډمان به په دې توګه په سرې د سر جوړولو د تکلیف وخت ژر تېروی او پام به یې په بله اړوی چې تر بیاتې لاندې د زمان ثقلت ډېر حس نه کړې ، یا ممکن دا علت وی چې ډمان هرځای او هر کاله ته ځی راځی او له ډېرو سره یې هره ورځ لیدل کتل کېږی ، ډېر څه وینی او ډېر څه اوری نو له ډکه لوښی که نه څاڅی هم وبه څاڅی ؛ ښایی هم فرصت په ګوتو ورغلی وی چې د ده خوله خلاصه او ستا ورته ترلې وی اوچې غوږ ورته نه نیسې چاره به دې څه وی ؟!...

خلیفه مراد د شلوېښتو پنځوسو کلونو په عمر نری ، وچ او په ونه میانه سړی وُ ، لکه خپل د سر جوړولو ماشین ترکاڼ به

یې کړې چا ډېره وه او نړ مطلب به یې "وپوهیدې" ډېر و . څرنګه چې سابقه دار دلاك ؤ ډېرې پېژندل او ډېرو پېژاندهٔ ، دځان نښلولو چل ښهٔ ورتلو او پهٔ راشه درشه ښهٔ پوهیدهٔ ، مراجعین یې ګڼ او د کار ساحه یې پراخه وه . پهٔ ښار کښې یې هټۍ وه خو دے به ډېر وخت د کورونو پهٔ خدمت کښې ؤ ، لویو کورونو ته به پخپله ورتلو او پهٔ دې توګه به یې نزهغو لاره ګرځولې وه چې بل ته مراجعه ونهٔ کړي . سهار چې به یې چای څښلے ؤ یا نه د دوکان ور به یې پرانست ، شاګردان به یې پهٔ کار وګمارل ، د سلمانۍ ضروری سامان به یې چې تیار پهٔ یوهٔ بکس کښې پراتهٔ وو ورسره واخېستل ، پهٔ بایسکل به یې ښه واړوله ، د پروګرام لهٔ مخې به پهٔ تاکلیو کورونو راګرځید او د هغوی سرونه به یې جوړول ( اصلاح کول ) .

خلیفه مراد کور ، کډه ، لوښي ، زامن هم لرل چې درستو د دهٔ لاسونو ته کتل ، څرنګه چې لوی سرونه ورته ټېټېدل د لویو خلکو داد هم لوی ؤ ، ګذاره یې ښه او ژوند یې مخ پهٔ ښهٔ کیدو ؤ ؛ چې پهٔ سر به درلګیا شو لومړے به یې د چا غټې او سرمایه دار سړي تعریف ورته راواخېست ، دا به یې ورته ښودله چې د دوی پهٔ منځ کښې صرف د غه د بیاتی او اضافی وېښتو رابطه نهٔ ده بلکې دوجانبه اخلاص او لورینې هم سره تړلې دی . دے کهٔ پهٔ نیمه شپه کښې هم وی د هغهٔ خدمت ته حاضر دے او کهٔ پهٔ غنو او پهٔ اغزو هم لاره فرش

شوي وي په سر ورځي، په خليل كښې خلل نشته . دے يو سپين مامدين او سم سيده بنيادم دے ، چوسه نه پيژنې ، كه مخ په مخ وي كه شا په شا د نېكانو نېكي نه هېروي او د ښو خلكو ستاينه او لمانځنه ايماني او وجداني فريضه گڼي . دے له هغو چاپلوسانو څخه نه دے چي له چا مخامخ حاتم طايي جوړوي خو چي ورته شا يې شي د قارون ميراث خور يې بولي ، يا په حضور كښې ورڅخه ځان او اولاد جاروي خو په غياب كښې يې د مرگ لايق گڼي او نه كړي جرمونه ورپورې تپي . ده به دا ښودله چي دے كه غريب دے غريب به وي كه عاجز دے عاجز به وي ، كه ډوم دے ډوم به هم وي خو فطرتاً ټيټ او خپل چاروكے بنيادم نه دے ؛ په ياري دوستي سر وركوي او ښه هروخت ورباندې ښكاره وي ، چي د چا په لمځي كښېني نه يې شكوي او نه ورباندې ټوكې .

خليفه مراد په دې ټوكه هرچا ته د پاس خاوند او د نېكي ورو سړے ښكاريده ، هرچا به ويل نېكي په خليفه مراد ښكاره ده، سړے بايد ښه له هغه چا سره وكړي چي په ښو پوهېږي او منې يې . . . .

طبعاً د خليفه مراد په دې خبرو د ده دانه ټوره هم زياتيد له هم يې نوي زړه سواندي پيدا كول ، هم يې پخواني ډېرې مهرباني ته تشويقول .

كله به چي خليفه مراد د چا د تعريف او تمجيد نه وزگار شو

لنډ به یې د ګرانۍ او قیمتۍ له لاسه ګرېوان د رته څیرې کړې چې ورځ مثلاً په دومره دی او وریژې په دومره او غوښه ! غوښه خو به هغه خوری چې خوړلې یې شی .

څه به یې پیتوم زه چې به هرکله ورته کښېناستم د دهٔ له ډېرو مکرو خبرو به پکو وم چې یوه یې راته نوې اود اوږد لو وړ نهٔ وه هر وخت هغه یو مبتذل مضمون وُ او هغه یوه سندره !

ښار له دلاکانو ډك وُ خونهٔ پوهېدم چې څهٔ شی به دې ته اړکړم چې تر لسو تشو دوکانونو راتېر شم او د دهٔ په هټۍ کښې د انتظار سختې شیبې او ورسره د دهٔ بې خـونده کیسې ومنم او واورم !؟ په تېره چې بنځه یې مړه شوه اود کورجای جارو او د نغری غاړه دهٔ ته وریاته شوله او بیا یې د څېنو زړهٔ سواند و او نېکوکارو یارانو په برکت بله بنځه څوره او کور یې ورباندې بسیا کړ ، هم یې مشکلات ډېر شوی وو ډېر څهٔ یې لرل چې ورباندې وژغېږی ، هم یې ډېرې مرستې لیدلې وې مجبور وُ چې د هرڅا وړاندې ځانته ځانته وستایی چې څو تاره وېښتهٔ به یې د بیاتی خولې ته ورکول لس ځله به یې بیاستی خواره له لسرې ورته وچیخوله او هر وېښتهٔ به یې پخیلې ماتې زړې ږمنځې یوه خوا بله خوا واړاوهٔ راواړاوهٔ ، ځکه چې له خبرو به نهٔ وُ ورخلاص ، دیوهٔ سربرسېرې اصلاح به دې کافی وخت نیولې وُ ؛ یوه ورځ د دهٔ تر دو یم وادهٔ راوروسته زهٔ ورته ناست وم ، د ځ مې له وېښتو سره لګیا وُ د بیاتی زوری ورښودهٔ

داسې معلومیده چې خلیفه مراد د عادت خلاف ګونګه روږه نیولې او تر خبرو په کار خوښ دے ، د بیاني پرله پسې غچ غچ د دوکان سکوت ورماتاوۀ ، تا به ویل چې یو سپېل توتکی په بازوانو کښې مشغولیږی ، شاګردان یې پټه خولهٔ نوش وو ، نهٔ دوی ژغیدل نهٔ مونږ ، د هر یوهٔ مېز لهٔ شا د غچه غچه ، غچه غچه اوازونه راپورته کیدل او پهٔ هره یوه لمنه کښې د وېښتانو سرونه وو چې راټوییدل .

خپلو تصوراتو ته خلاص وم ، سودا راولویده چې ګوره پهٔ هر ښار کښې څومره د سلمانی هټۍ دی او پهٔ هره هټۍ کښې بیا څومره کسان صرف د خلکو د وېښتانو د اصلاح دپاره پهٔ کار بوخت دی ، مختلف وسایل یې ورته جوړ کړی دی چې د چا وېښته کوم سانتی یا ملی متر تر ټاکلی حده اوږدهٔ نهٔ شی کهٔ اوږدهٔ شول ممکن نږی پهٔ بله واوړی او د جهان پهٔ نظام کښې به ګډوډی راولی ؛ خو هیڅ چا تر اوسه د دې خبرې سوچ نهٔ دے کړے چې اوږدهٔ لاسونه اوږدې ژبې هم د لنډولو او غوڅولو وړ دی کهٔ نه ؟! کهٔ دی هغې ته هم کومه هټۍ او وسایل شته کهٔ څرنګه ؟! کهٔ نشته نو آیا د وېښتانو تر اوږدیدلو د ژبې او لاسونو اوږدیدل ډېر لوی عیبونه نهٔ دی ؟! آیا زبان بازی او دراز دستی دومره کم اهمیته ده چې د وېښتو قدرې اهمیت هم څوک نهٔ ورکوی کهٔ څنګه ؟! یا خو خبره بل څهٔ ده ، پهٔ کمزوری او بې حسه شی د هر چا لاس بر وی ؛ وېښتهٔ او نوکان ځکه ژر ژر اصلاح

کوو چې کمزوري دی او د بې حسه غرېبو لنډولو او غوڅول ضروري امر دے ....

خلیفه مراد به خدای خبر په څه چورت کښې وُ، یا به یې د خپلې بیاتي پرله پسې چغې خوښ وُ، هیڅ یې هم نه ویل، ما په زړه کښې ویل: "سړیه! د دغه دې عادت شه چې هم وخت را سپېږي هم ماغزه." د بیاتیو د واړه غچ غچ موسیقي سټرېو اندېښنو ته د منزل بال و پر ورکاوه، خیال چې به له یوه میدانه راستون شو وُ، بل میدان به یې په نظر کښې وُ، چې له یوه غره نه به فکر راکوزیده بیا به یې د بل غره د ختلو نیت کړے وُ. په منتظرینو کښې یو معلم صاحب ناست وُ، تر دغه دمه په یوې شلیدلې پخوانۍ مجلې نوبش وُ، چې د عکسونو او عنوانونو له کتنې فارغ شو د انتظار د لحظو درېښت یې نه وزغملے شو، یا بنایي غوږونو به یې کاه کوله چې له خلیفه مراده یې پوښتنه وکړه:

— خلیفه! "اکبرجان" نه معلومېږي، چېرته دے؟

اکبر د خلیفه مراد مشر زوی وُ د اتلسو نولسو کلونو په عمر، چې کله به له ښوونځي راغے د پلار په دوکان کښې به یې کار کاوه. خلیفه چې تر دغه دمه خدای خبر په څه اندېښنو کښې ډوب وُ یو ناڅاپه لکه سور کړې رباب ته چې لاس کړې په خبرو راغے، هر رګ یې له شکوو لبرېز او هر وېښته یې د شکایت ژبه شوه د زوی له لاسه یې سر تندے ونکاوه او په ښېرا یې ورته خوله وچه کړه، ویې ویل:

ـ معلم صاحب ! هیڅوك نهٔ دی ملامت ، خطا د رستنه لهٔ ما پیښه شوې ده ؛ وايي آسونه يې نعلول چينګښو هم پښې پورته ونیولې. ما ته وګوره ، زما خوارېده اربابانه ته وګوره ، زما کار،کسب او پېشې ته وګوره،او بیا دې ته وګوره چې اکبر بدمرغه مې پهٔ لوی لاس واستاوهٔ ښوونځی ته ، دې ته مې نهٔ کتل چې چېرته هندوان اوچېرته اوښان !! پرته لهٔ دې چې پتلون راته واغوندي ، بکسکې ترڅنګ کړي غټې غټې وژغېږي او ارته وګرځي نور مې د خلې شمر هم نهٔ وربانديې کېږي . پخوا لا يوڅه ښهٔ وُ ، لښ ډېر به يې لاس تیناوهٔ څهٔ نا څهٔ مې لاس وربانديې خلاص (سپك) وُ ، د کور سودا خو به يې وړه ، اوس رسيدلے دے، د لاتې برنس زوی ترې جوړ شوے دے کهٔ خدای خبر د وزیرفتح خان لمسے !! څهٔ چې ورته وایم پهٔ خولې پورې مې خاندی . نو معلم صاحب ! کهٔ دې خوا نهٔ بدېږی زهٔ خو وایم کهٔ دا تعلیم دغه شے وی پهٔ توبو مې توبه ده،او کهٔ يې د مکتب دغه ګټه خلکو ته رسېږی ترمکتب يې نهٔ مکتب ښهٔ دے . موږ چې مکتبونه نهٔ وو لوستی کوم لهٔ لوړې مړهٔ شوی یو یا چا لهٔ مجلسه لتولی یو چې دوی به راته لندن فتحه کړي !...

معلم صاحب وویل :

ـ خدای دې خیر کړي لکه چې ډېر ورته ځورېدلے يې چې د دهٔ لهٔ امله درست معارف ته پهٔ قهر يې !؟

خلیفه وویل :

ـ څرنګه به نه یم په قهر ؟! زوی یې له بنې راځغه ویوست اسمان ته به ګوری ، ته به وایې چې ځکه د ده په بنکر ولاړه ده او د اسمان تناوونه ده راتینګ کړی دی ، اوښ بوښ ، ارجه برجه به وایې چې په تکی یې هم نه پوهېږم او ښایي چې دے هم نه وپوهېږي دې ته به نه ګوری چې کله نور یې وایی په وسه به یې وی ؛ پکیر چې الله بولی څه به وینې ، خو خوار سړے او سوریې سپې ساتل د بې عقله خلکو کار دے ، چې ځان نه پېژني وایی هغه خدای نه پېژني .

معلم وویل :

ـ بښه به شی ، ځوانی ده ، په نوی ځوانی کښې هرڅوك دغسې وی ، په دې کښې د معلم او مکتب ګناه نشته ؛ نه معلم او مکتب چا ته د خود سرۍ او بېباکۍ درس ورکوی .....

خلیفه وویل :

ـ د مکتب او معلم څرنګه ګناه نشته ؟! نوی ځوانی خو په مونږ هم تېره شوې ده ، هیڅوك له موره سپین ږیری نه دی زوولی ، درست چې ګورې ماشومان وی ، زلمیان شی ، بوډاګان شی ، د هیچا سترګې له وازدو نه وی دکې ، هرڅوك څه خوری څه پرېږدی ، د ومره مستی او داسې ځوانی دې اور واخلی چې سړے دومره له چتې وباسی چې نه مور پېژني ، نه پلار پېژني ، نه خدای پېژني ، نه یې په اخرت باور وی نه په حساب وکتاب ؛ وایی دا خبرې درستې ملایانو د خیرات او زکات لپاره او شتمنو د غریبانو

د تسلي لپاره جوړې کړې دي ، په د غه چل غريبان لوټي او د دوی حق حقوق ورڅخه خوري . . . . په توبو مې دې توبه وي ، زوی نه دے سور کافر دے ، نو که يې په مکتب کښې نه وی زده کړې ته ووايه دا خبرې چا په غوږ کښې ورايښي دي ؟!

معلم وويل :

ــ په مکتب کښې خو هغه دے په زرګونو نور هلکان هم سبق وايي ، چې يو يکښې ياد سارے شو د نورو څه ګناه ؟!

خليفه وويل :

ــ معلم صاحب ! په زړه مې ډېر لاس مه وهه ، ويرېږم چې ترک به يې شي وبه چوي ؛ دا پرون پرون چا راته وويل چې اکبر خلقي شوے دے ، نو که دا خلقيتوب ورته معلمانو نه وی ورښودلے او هغوی نه وی ورته لمسولے نو زۀ ولې نه خلقي کېږم ؟!

معلم وويل :

ــ مراد اکا ! په دې کښې شک نشته چې ځينې معلمان حزبي فعاليتونه کوی ، علاوه پر رسمي وظيفې چې هلکانو ته د ښوونځي د کتابونو تدريس دے ، خپله تيوري او اضافي څه هم ورښيي او خصوصاً هغه شاګردان چې له عقله پل او ساده وی ، يا يې په درسونو کښې خوند نه وی يا يې د بدبيني حس قوی وی ، دا شان هلکان ښه ورجذبېږی . که دې خوا نه بدبرې ، اکبر جان دې سرو کمزوری لری ؛ هم ساده او خوش باوره دے ، هم يې په درسونو کښې خونده نشته د استاد لطف وکرم ته اړ دے او هم ښايي له کوره ما هيجن

او خواپیتیا وی .

خلیفه وویل :

ــ له کوره چا ورسره څه کړی دی ، چا زیاته خوړلې ده چې دے پاتې دے ، په موږ کومه پاچهی ده چې د دهٔ خـونده نـشته ؟ . . .

معلم وویل :

ــ داسې فکر کوم چې د نوې کندې به دې ورسره سپے ینه نه غـاپی څهٔ هغه پرده مور ده ، څهٔ دے هلك دے ، چې پرده مور د کور واکداره وینی هغه سره خبره یې هم بده ورباندې لګیږی، پاته شوه لا ستغه خبره ؛ دغه علت دے چې عقده یې اخیستې ، کور اور ، تهٔ ، زهٔ حتیٰ درست نظام ورته د ارونې ورینبکاری او ټول مقررات بیهوده او ظالمانه په نظر ورځی . څرنګه چې له تاسره یاراشنا د خدای په جات د وادهٔ په مصارفو کښې مرسته کړې ده، دے فکر کوی چې کهٔ سرمایدار نه وے هرڅوك به پخپلو خولو کښې ډوب وُ ، تهٔ به هیڅکله په دې نه وے قادر شوے چې نوے وادهٔ دې کړے وے چې د دهٔ د سر ماوت شی . هوسی هسی هم له پینو ګرندی ده چې پښولی ورپهٔ پینوکړې د غرو رغو شی ، د دهٔ هم چې څهٔ خپله عقده وه ، څهٔ یه نورو په پینوکړے وی ، طبعاً دې نتیجې ته رسیږی چې سرمایه د شر او فساد منبع ده چې له بنو یې دومره بد راولاړیږی بد ارخ به یې څنګه وی ؟ . . . او چې څوك پهٔ دومره بدی برسیره د سرمایې ملاتړې هغه باید څهٔ وبلل شی ؟ . . . مجبور شی د

"مارکس" نظریو ته د عقیدت سر کښېږدی او په پښتو سټرګو د کمونیزم او ماټریالیزم په لوری روان شی .

د دوی بحث وار په وار جدی بنه غوره کوله ، زما په مخ او سټرګو د ویښتو باران ؤ ، د بیاتیو له غچا سره مې د دوی خبرې اورېدې خو ربښتیا خبره دا ده چې هر یوه به د خبرو وار ونیوه خو به بل ته وار ورر سیدو ما ته به د اسې حق په جانبه ښکارېدو ویل به مې چې ښه وایي هغه بل تېروتے دے ، خو چې بل ته به وار ورغے د هغه دلایل به هم د منلو وو ؛ زما سر اصلاح شو د بیاتی او ږمنځې له جنجاله په خیر خلاص شوم ، د دوی بحث هم مخ په تمامیدلو ؤ خو نتیجې ته نه دوی رسیدلی وو او نه زه ، په دې پوه نه شوم چې خر ښو ته ورك دے که بدو ته ؟ . . . که بدو ته ورك وی د ورکې اصلی عامل او علت څه شے او څوك دے ؟؟ . . .

شپې ورځې تېرېدې ، نه د خلکو ویښته تمامیدل نه د خلیفه مراد د بیاتی غابښ چیچې ورته کمیدو ، دوکان یې چلیدو خو د بهر د یارانو یې ورځ په ورځ کمې و ، هر شتمن له بل سلانی سره قرداد کړے ؤ ، ځکه چې د ده زوی اکبر کمونسټ شوے ؤ ؛ د کمونسټ او سرمایدار خو هسې هم لکه مږه او لېوه ښه نه سره ابسوی ! خلیفه مراد په دې خبرې ډېر خواشینے ؤ ، نه یې د زوی ښکاره فعالیتونه د پېتولی وو نه یې بله چاره لیده ، له اکبر سره به کله پخلا ؤ کله مرور ، خو اکبر هم کم سارے نه ؤ چې د پخلاکیدلو اړ وی یا یې د مروریدلو پرواد ار .

د خلیفه مراد خرڅ مخ په ډېرېدو او عواید یې مخ په کمیدو وو
تش دوکان ته ناست وُ چې له هغه نه هم د شاګردانو برخه او
د دوکان کرایه ، د ښاروالۍ او مستوفیت محصول ، چراغ پــولی
جاروکشي ، څوکیداري او نور وضعه شي څه به پاتې شي چې د ے
وریاندې سلامت کور وچلوي ، هغه هم په دې ګرانۍ او قیمتۍ کښې؟...
له زویه یې څه جوړ نه شول ، نه د دین شو نه د سادین ؛ په دوه
کاله کښې خلیفه مراد داسې اندېښنو ځپلی وُ چې تا به ویل اویا کلن
بوډا د ے .

د ثور له کودتا وروسته د اکبر ښېډه میره او غوا یې لنګه شوې
وه ؛ اخر پنځه کلن حزبي او د ګوند سابقه دار غړ ے وُ ؛ ډېرو چې
اوس سازمانونو ته لاره پیدا کړې وه خولې یې اسمان ته غورځوله او
په ساده درخواست یې د چا عرض سلام هم نه اوریدو . د ے خولا
پخوان حزبي وُ ، د هغه وخت چې چا یې لا د حزب لیډر نه پـېژانده
او چاته لا دا پته نه وه چې "خلق" یعنې څه ؟ چې میاشت وتله اکبرجان
د یوې موسسې معاون او وروسته د ولایتي کمېټې ګوندي غړ ے شو.
ډېر معاش ، سرکاري موټر ، پسته او لویه چوکۍ د وسیعو
اختیاراتو سره یوځای په لاس ورغلل؛ لومړ ے یې راشروع کړه پخپلو
همځولیو او خپلو هغو استادانو چې د ده سپي به ښه نه ورتــه
غپیده . وروسته یې د هغو سرمایدارانو لېستې برابر کړې چا چې یې
له پلاره سره د واده په مصارفو کښې مرسته کړې وه او په نتیجه
کښې یې د ده ثوند ورتریخ کړ ے وُ...          دا نیسه ، هغه نیسه

دا تره ، هغه تره .... په لنډ وخت کښې یې د زړهٔ برابر وپوست.
څرنګه چې حزب رشته داری او قرابتونه کرلی دی پلار یې هم ورسره
اوه په پوکی خښلې ، چې مارشونه به راووتل مراد اکا به یې په سر
کسښې "هورا" ویله، چې د خپلې خوښې خلقی کار به پیل شو خلیفه به هرومرو
لسنونی ورنغښتی وو .

خلیفه مراد د ولایتی کمېټی رسمی نایب ؤ . خو په افتخاری توګه
او خلقی روحیه، په میاشت کښې به یې دوه ځلې لږ تر لږه پنځوس شپېته سرونه
سپکول خو هېڅکله چا ده خلقی کار په کار نه وشمېرهٔ ؛ نور خلك چې
دوه زنبېله خاورې له یوهٔ ځایه واخلی بل ځای یې واړوی دوه شپې
یې په راډیو کښې د خپلې خوښې کار ستایل کېږی ، دے هره ورځ لګیا
وی حرامه ده که به څوك ورته شاباش هم ورکوی ؛ مګر ډلاکی په کمونزم کښې
هم سپك او بې ارزښه کار دے که څرنګه ؟ . . .

ده ته د خپلې پېشې په نسبت عجیب و غریب مایوسونکی تأثرات
ورپیدا شوی وو ، همېشه به یې آینده ته په شك او تردید کتل ، فعالیت
یې ډېر شوے ؤ ، لاس او پښې یې د برې ستړې وې خو د زیست ژواك
خونده یې مخ په خرابېدلو وه . یوه ورځ چا ورته وویل :

اوس خو شکر دے اکبرجان لوی سړے شو ، وربانده هوسا به یې ؟!

ــ ده وویل :

ــ اکبرجان دې خدای لری د حزب په چارو کښې داسې غرق دے
چې کور او ریې په خیال کښې هم نه ورګرځی ، په شپو ورځو ورك وی
لکه تاسو یې چې نه وینئ زهٔ یې هم نه وینم ؛ مګر هغه وخت یې وینم

چې سر یې رسیدلې وي .

هغهٔ وویل :

ــ هو ! حزبي چارې د خپلو غړیو فعالیتونو او پاملرنې ته ضرورت لري خو ما ویل اوس چې کافي معاش لری ممکن مرسته به د رسره کوی !

دهٔ وویل :

ــ معاش به خامخا لری خو حرامه ده کهٔ به یې پهٔ پیسه هم پوه شوې یم ، ایله د خرهٔ کرایه د خرهٔ کفن شی ، خو دومره پوهېږم چې خـرهغه دې ځل یې میاشت پهٔ میاشت نوې کېږي .

هغهٔ وویل :

ــ خیر دې وي نوې کار دې !! لباس ته ضرورت لري ، لوی سړې شو ، پهٔ غټه چوکۍ ناست دې ؛ مجبور دې چې لومړې پخپل سر وبر لاس ووهی .

دهٔ وویل :

ــ یو دا درته وایم چې خدای دې یو لاس هم بل لاس ته مهٔ اړ کوه واځانه ، تنها ځانه !! د نن سبا زامن ایله کهٔ خپل ځان ته ورسېږی څهٔ به یې کوو کهٔ وزیر هم شی ، زما یې ورباندې څهٔ ؟ . . . زهٔ خو به هغه زوړ نایې یم ، د خپلې بیاتی خولې ته به گورم .

هغهٔ وویل :

ــ هغسې خوده . بیا هم د غه کفایت کوی چې افتخار یې تا ته رسېږی .

دهٔ وویل :

ـ هلك دے ، خام دے ، تجربه نهٔ لري ؛ وار لهٔ واره یې ډېر پورته کښېناوهٔ ، خدای دې خیر ورته پېښ کړي .

هغهٔ وویل :

ـ دا نو راسره ومنه چې اوس د هغهٔ وختونه تللي دي چې چوکۍ به د خپلوۍ او یارۍ په حساب وېشل کیدې ، یا به په رشوتونو لاس ته کیدې ، خلقي دولت تر هرڅهٔ د مخه کار او فعالیت ته ګوري چې په چاکښې د کار توان او لیاقت نهٔ وويني څرګاري ته یې هم نهٔ پرېږدي . اکبرجان به تا ته اوس هم هغه ماشوم ښکاري چې لیدلے دې وُ ؛ هغسې نهٔ دے .

خلیفه مراد سر وښوراوهٔ او په حسرت سره یې وویل :

ـ دغسې به وي خو چې ګورم اکثر یې تر سپي غپوندي زیات وي او تر بېزو یې زنځیر !

کابل ۱۹ ، ۵ ، ۱۳۵۹ ش.ه

# سره غالی

"آیینه قز" چې بیا خپله ډوډۍ تنارهٔ ته ووهله د اور لهٔ تاوه یې مخ واړاوهٔ او پهٔ ګونه یې د تندی خولې وخنډلې ، "یخشی ګل" تروږ ته یې وویل :

– تروږې ! تهٔ دې خپلې ډوډۍ جوړوه ، تنور لا ښهٔ سوردے او زما کار تمامېږی ، چې دا ځل ډوډۍ راوباسم ستا ډوډۍ به ورته ووهم .

یخشی ګل چې د تنارهٔ خواته ناسته وه ورته وې ویل :

– پهٔ ځوانۍ دې برکت شه زویه ، دا دے پلنې به یې کړم .

د اوزبکو د دستور لهٔ مخې شلورو پنځو کورونو پهٔ ګډه د کلی پهٔ منځ کښې ولاړ تنور وهلے وُ ، پهٔ ګډه به یې تودا وهٔ او پهٔ وارسرهٔ به یې ډوډۍ ورته وهله .

ولاړ تنارهٔ ته ډوډۍ پهٔ ولاړه وهلې کېږی ؛ آیینه قز څوارلس کلنه پنځلس کلنه پېغله وه ، هغومره چې خدای پاک لهٔ ښې وئې او ښو اندامونو سره ښهٔ کړهٔ وړهٔ ورکړې وو هغومره هم تکړه ، زړهٔ سواندی

او وریښې ځلې وه ، په خوی خصلت د درستو کلیوالو تر پام ښه وه ؛ د ډېرو ډوډۍ به دې تنارۀ ته وهلې ، له کاره یې خوند اخیستهٔ ؛ خصوصاً د زړو او کمزوریو ښځو لاس به وربانډې سپک ؤ .

اوزبکې ډوډۍ ښې خمیره او ډبلې ډوډۍ وي ، د پاستو غونډې په ملتې کښې نه پخېږي ؛ چې بیا آیینه قز د یخشی‌گل ډوډۍ تنارۀ ته ووهلې او په مخ یې د خپل گلدار سندوف اوږد لستوڼی راتېر کړ ، یخشی‌گل ورته وویل :

ــ زویه غالیه دې کوم ځای ته ورسوله !؟

دې وویل :

ــ غالیه نوره تمامه ده صرف څلور گوټې قدر پاته ده چې که خدای کول په درو څلورو ورځو کښې به ترې خلاصه شم .

یخشی‌گل وویل :

ــ زهٔ دا ډېرې ورځې نهٔ یم وزگاره شوې چې کار دې وگورم ښهٔ دے اوس نو د کوتل سرته ختلې یې ، غوالې دې نور پوست کړے دے صرف لکه یې پاته ده .

آیینه قز وویل :

ــ د مور ناروغۍ او د کور کار فرصت نهٔ راکوی ، که نه له وخته به خلاصه وه .

یخشی‌گل وخندل او ویې ویل :

د کور کار یوې خواته د مور خدمت دې بلې خواته د زړهٔ کار

ته نهٔ پرېږدی ، ځکه ما داسې فکر کاوهٔ چې اوس به دې لا نر نېمائی نهٔ وی اړولې خو خدای دې لهٔ بدو ستړګو ساته .

آیېنه قز چې د ننارهٔ اور ولړلو او د ودېو ته یې ځهٔ اوبهٔ وشندلې ، ویې ویل :

— پېل پایه او پتنوس ګلې غالۍ مې اوبدلې وې خو داخل مې هوس کړے وُ چې چنار ګلې غالۍ واوبدم ؛ ته هم رانا روغه شوې ، نهٔ پوهېږم چې څرنګه به راغلې وی !

یخشی ګل وویل :

— د لندو ختو لښ اوبهٔ دارو وی ، د زړښت دې کور وران شی سرې پهٔ پله پروت وی ، پهٔ مونږ هم اوس وخت تېر شوے دے ، لهٔ تو څی سره مو ساه وځی ؛ ډېر مې زړهٔ غوښتل چې درشم خو ځهٔ به درته وایم !

آیېنه قز وویل :

— ما هم بېړه وکړه ، باید ستا مشوره مې اخېستې وے .

هنې وویل :

— تا ته خدای پهٔ لږ عمر ډېر ښه فکر درکړے دے ، باور لرم چې اوس هم تر مونږ ستا پوهه ښه وررسېږی خو دومره درته وایم چې د غالۍ اوبدل تمام شی پرې کوله او بیائی یې پخپلې مور مهٔ کوه ؛ د هغې لاس ښهٔ نهٔ دے ، هسې سرزورې ښځه ده هسې نه چې خوارې دې ابته کړی : زهٔ به درشم .

آیېنه قز وویل :

ــ داخل مې ډېره خواري پرې کړې ده چې ته يې رابياتې نه کړې په بل چاپې نه پرې کوم .

يخشي گل په موسکا وويل :

ــ بنه چرګ به حلال کړې او په پلاو کښې به يې کېږدې، ډېر يې ستا او خدمت يې زموږ .

آيينه قز وخندل او ويې ويل :

ــ چرګ خو به درجار کړم ، هسې نه چې ناروغه دې کړې!

يخشي گل وويل :

ــ مرګ هم په دکه خېټه خوند کوي ، پرېږده چې ستا په پلاو مړه شم .

آيينه قز چې پخې ډوډۍ راوايستلې او نوې يې ورته وهلې ويې ويل :

ــ له کوچنی ورور سره مې پلار وعده کړې وه چې داځل غالۍ خرڅه کړي، ده ته به جامې او نوې چپن اخلي ، اوس مې ورور لنډ ماسل دی ، هره لحظه چې دکور له کاره وزګاره شم راپسې وي چې هله ژر شه غالۍ ژر تمامه کړه !! له دې امله زه هم هر وخت په غالۍ ناسته يم او دی هم راسره لګيا وي کار کوي ، بلکې دکور ډېر کار ده په غاړه اخيستی وي، ځکه ژر تماميدنې ته نژدې شوه .

يخشي گل وويل :

ــ چې بله غالۍ جار کوې زه به بله نقشه په لاس درکړم ، نن سبا

"آلمه گل" غالۍ ډېرې پسند دی ، آلمه گلې به د روېښیم .

آیېنه قز وویل :

ــ ترورې! ورېِ غالۍ مې ډېرې جوړې کړې، داخل مې نښت دے چې لویه غالۍ جار کړم .

یخشی گل ورته وویل :

ــ نه زویه دا کار مهٔ کوه !! دا نو پهٔ تجربه درته وایم چې لویه غالۍ پهٔ یوهٔ سر نهٔ جوړېږي ، هم ډېر وخت نیسی زړهٔ دې وهی ، هم یو لاس نهٔ راځی ؛ مور دې هم رنځوره ده کار نهٔ شی درسره کولے ، کهٔ یې وکړی هم مهٔ یې ورېږېږده ؛ تهٔ ځوانه یې پهٔ گوتو او متو کښې دې زور شته ، دا کمزورې د یوه غالۍ کهٔ دواړه اوبځ دوه وړه راځی او کش پیدا کوی .

آیېنه قز وویل :

ــ ښهٔ شو چې راته ودې ویل ، دا رښتیا ده ، زما بیا هېره وه نېر کال مې یو جای نماز لهٔ ادې سره پهٔ گډه جوړ کړے وُ چې ورته کتل به مې د دې غوټې ډېرې سستې وې ؛ جای نماز پهٔ نیمایی بیه هم نهٔ شو خرڅ .

یخشی گل وویل :

ــ ښه غالۍ برسېره پر دې چې باید یو لاس او بدلې شوې وې ضروری خبره ده چې یو لاس بیانې هم شی ، کهٔ پهٔ بیانی کولو کښې یې احتیاط نهٔ وشی او کوږې نا اواره یې بیانې کړې درست زیار به دې پهٔ سین لاهو کړے وی .

آیینه قز چې بیا اور ولګاو او تناره ته وهلې د ویرې یې تر

نظر تیرې کړې، وې ویل :

ـ ربښتیا خبره ده ، هر کار تجربه او حوصله غواړي ، چې زه له

تجربې نیمګړې یم او مور مې حوصله نه لري، ځکه وایم چې دا

غالۍ به په تا پرې کوم او نه به یې رابیاتی کوې !

چې آیینه قز بیا سر تناره ته ورټیټ کړ ، د ویرې ورته

پخې ښکاره شوې ، راوې یې ایستلې ، خوله یې وخندله ؛ په داسې

حال کښې چې د واړو خپلې د ویرې پخپلو وړینو رویو (د "ږ"

او د دو یم "واو" په زور سره ) کښې نغښتې، آیینه قز یوه خوا

بله خوا وکتل ، غوږ یې ونیوه او په وارخطایۍ یې وویل :

ـ تروږې د ټپنکونو ژغ نه دے !؟

یخشي ګل وویل :

ـ په ټپنکونو یې اور پورې شه ، زه خو یې نه اورم ؛ خه مې

به را نه غواړي ؟

آیینه قز وویل :

ـ ما ته خو داسې معلومیږي .

یخشي ګل چې شا وخوا وکتل د کلي نورې ښځې او ماشومان یې

متوجه ولیدل ؛ یوه ښځه پر بام ولاړه وه ، هغه یې وپوښتله، هغې

هم ورته وویل :

ـ د ټپنکونو ژغ مخ په زیاتیدو دے او وار په وار راښږدې

کیږي .

دا اوومه میاشت وه چې روسی قوه پر د غې خوا نهٔ وه راغلې وضعه عادی وه او مجاهدین هم لږ تللی وو ، ځکه چې د یرغل مخه بدله شوې وه ، په کلی کښې یا وارهٔ پاته وو یا زارهٔ د کلی تلاشی او لوټل اسان کار وُ ؛ هوښیارو ښځو کښې لا پخوا ښځې کړې وې خو د پاته مال او تر هغه هم مهمه د ناموس مسئله وه چې نهٔ یې پټول ممکن وو نهٔ یې ساتل .

د ټینکونو ژغ په بیره رانژدې کېدهٔ او واهمه په درست کلی لکه توره بارانی وریځ راخوریدله . یخشی کل او آیینه قز د ډوډیو پنډې کورونو ته ورسولې ، د تنارهٔ تاو بچکایه خوت او خوله یې تا به ویل چې له ډېرې ویرې وازه پاته شوې ده . د ټینکونو ژغ تر کلی راوګرځېد ، کانه هم په دې پوه شول چې کلی محاصره شو ؛ ماشومانو د میندو لمنې نیولې وې او ومیند ستانه ورننګول . خهٔ شیبه وروسته ډزې شوې او سرې مرمۍ په هوا کښې سره تېرېدې ، لنډ وروسته سرهٔ پوځیان په کلی کښې پلی شول ، بوډا اکان وروتل چې کوندې د لښکر مخه له یې د فاع کلی خخه وارووی، خو چې یو دوه یې په کنداغونو ووهل او پرمخ ولویدل نور ځای پرځای شنهٔ شهید ودریدل تلاشی شروع شوه ، کورونه یې لټ پر لټ وارول ، سندوخونه مات شول او بوغچې وتوښیل شوې ؛ د برچو په څوکه دخونو تل او د دېوالونو ډډې سوری شوې خو نهٔ یې وسله وموندهٔ نهٔ یې مجاهد ولید ، په لوټ تالان یې لاس پورې کړ ،چې د والې

څه په لاس ورتلل د پلار مال يې و .

د آيينه قز دوی کره بل څه په ګوتو نه ورغلل د ډوډۍ رووې يې له تودو ډوډيو ډک ومونده ؛ يوه پرچمي ځوان چې له روسی پوځ سره ملګری وه د کور خاوند ته وويل :

ـ په کاله کښې څو تنه اوسئ ؟!

بابه "يولداش" ورته وويل :

ـ يو زه يم ، يوه مې ښځه ده ، يوه لور او يو ماشوم زوی لرم ؛ نور څوك نه لرم .

پرچمي په ډېر قهر ورته وويل :

ـ که د اشرارو مله نه ياست او د هغوی لپاره ډوډۍ نه پخوئ ، په څلور تنه مو شل دوه ويشت غټې غټې ډوډۍ ولې پخې کړې دي ؟ . . .

بابه يولداش وويل :

ـ مونږ د کار خلك يو ، د شتمنو غونډې د ورځې دريځلې تنور نه شو تودولی ، د درو څلورو ورځو ډوډۍ په يوځلې پخه کړو او د غسې يې د سنيو په رووی کښې ونغاړو، چې هغه تمامه شی بيا يې غم کوو .

پرچمي وويل :

ـ تاسې اشرار هم د اشرارو مله ياست هم زيارکښان بدناموئ زه به له تا سره ګورم .

بابه وويل :

–اخر د خدای پار دے، گناه مې څه ده !؟

پرچمی وویل :

– یوه ډله اشرار ساتې ، دوی ته پخوې او گناه دې لا څه ده !!

په دې فرصت کښې روسان بلې خوانې ته ننوتل، چېرته چې یې غالۍ جار کړې وه ؛ څرنګه چې بل څه په لاس نه وو ورغلي، د غالۍ پیڅې یې په برچه پرې کړې او ناتمامه غالۍ یې پر اوږو واړوله . د آبدنه قز ماشوم ورور غالۍ ترې ونیوله او په ژړا یې ورته وویل :

– دا مه رانه وړه !

روسی په قهر د برچې په څوکه پورې واهه ، هلك شاته ولوید او وینې یې په گریوانه راخورې شوې ، مور او خور یې چیغې کړې . روسانو د ټوپکو ټوټو خولې ورواړولې چې غلې یې کړې خو د ښځو چیغې چېرته کرارېدې !

روسي وحشي هوایي ډزې وکړې ، د ډزو له اورېدو سره څو تنه ملېشه خوانې ته راننوتل ؛ دا ملېشه د هغو وطنفروشانو له جملې څخه وو چې دوی به منطقه ورباندې ساتله او کله کله به یې جنګ ته هم له ځانه سره بېول . ملېشه گانو فکر وکړ چې روسانو ښځو ته لاس اچولے دے ، سملاسي یې د ټوپکونو خولې ورواړولې او په سترګې رپ کښې یې لکه د مني وچې پاڼې راوغورځول په لږ وخت کښې کلے د جنګ میدان شو ؛ د روسانو او ملېشه گانو ترمنځ خونړۍ جګړه ونښتله ، که څه هم ملېشه لږ وُ او ښه

وسله هم د روسانو پــه لاس کښې وه، په نتیجه کښې هم د روسانو تلفات ډېر وو، هم یې ماتې خوړلې وه .

چې ټېنګونه ببرته ستانه شول، آیېنه قز د روسانو د وینو په دارو کښې خپل په وینو لړلې وروور راوچت کړ ، ټټرې زخمی وُ خو د خدای په فضل زخم برسېرن غوندې وُ ؛ پلار یې د روسانو مړې ځکول چې چېرته یې پټ کړي ، خور او مور یې د دهٔ په زخم ګوتې وهلې ، دهٔ په وینو لړلې او پرې شوې غالۍ ژړله .

# دعزت او ابرو وه وه ی

جمروز ماما به د ورځې خامخا دوه درې ځلې د ګواټرونو ورونه وهل او لازم هدایتونه به یې همسایګانو ته ورکول. مثلاً:

- له بجلۍ سره پام کوئ، په یوه ځلې ډېر کار مه ترې اخلئ چې فیوز شارټ نه شي؛ یا اوبه لږې مصرفوئ چې خان ډېره خرچه نه شي برداشت کولے. یا ماشومانو ته خبر ورکړئ چې په دېوالونو دې لیکې نه باسي، یا دې نورڅه وراے نه کوي چې خان وربانديے خفه کېږي ....

خو په پای کې به یې وخندل او وبه یې ویل:

- ګورئ په دې خبرو له ما خوا مه بدوئ، زه پردے نوکر یم د خان هدایت دے، که نه تاسو خپله ښه پوهېږئ چې د دې خبرو د بیا بیا ویلو څه ضرورت دے ؟!

همسایګانو به ویل:

- جمروز ښه سړے دے خو نایک (د کورونو مالک) نادیده او وړوکي سترګے غوندې دے؛ خدای مو دې ورسره پرده وساتي.

عجب خان ( د کورونو مالك ) د ټېکدارۍ له برکته په لږ وخت کښې د ځای ځایګیر خاوند شوے ؤ ، په محله کښې یې ځان ته یو څه ویل ، نه یې علم ؤ ، نه د معاشرت په ادابو پوهیدهٔ ؛ خو احتیاج ورته د ډېرو سرونه ټیټ کړي وو ؛ جمروز ماما یې کلیوال ؤ ، څه یې نه لرل ، د ده په تنخواه یې ګذاره وه . جمروز ماما لږ ډېر لوستے او په خبره پوه سړے ؤ ؛ هم یې د عجب خان د کوارټرونو نګرانی کوله ، هم یې د ده کارونه په دفترونو کښې خلاصول ، هم یې د خان نور حسابونه تصفیه کول ؛ جمروز د پاخهٔ عمر سړے و لاهرچا سره یې په پسته ژبه خبرې کولې .

عجب خان د ټېکو په لاس ته راوړلو کښې ډېر ماهر ؤ ، همېشه به ښې ټېکې لاس ته ورتللې چې له دې امله یې ژوند ژواك په لږ وخت کښې دومره ډېر بدل شوے ؤ چې نور یې پخپله هم ځان نه پېژاندهٔ خو ځایه محکې ، خو ځایه دوکانونه ، ټرکونه ، بسونه ، ښه بنګله او یو درجن کوارټرونه یې جوړ کړي وو چې له هرې خوا ورته کافی عواید راتلل او ورځ په ورځ یې پانګه ډېرېده ؛ کوارټرونه یې چې د جمروز ماما تر مستقیمې نګرانۍ لاندې وو ، هر یو د میاشتې له پنځوسوو تر زرو روپیو په کرایه ورکړل شوی وو خو عجب خان وربانډې خوښ نهٔ ؤ په پلمه به یې کاوندیان تنګول چې دا کار یې یواځې د بد خلقۍ له امله نهٔ ؤ ، بلکې د کنجوسۍ په لمسه یې تنګول ؛ ده په دې رویه کښې خیر لیدلے ؤ .

د پاکستان قانون دے چې څوك چاته کور په کرایه ورکړي بیا

څو چې کرایه نشین پخپله نهٔ وی وتلے د کور مالك یې نهٔ لهٔ قانونی دلیله پرته ایستلے شی، نهٔ ور باندې کرایه ډېرولے شی. کرایې ورځ پهٔ ورځ ډېرېږی ، د عجب خان غوندې حریص بنیادم باید کورونه د وخت پهٔ اوچته کرایه ورکړی ؛ ځکه به دهٔ همېشه بهانې لټولې او تنګول به یې چې د سړې سینې خاوند به هم د دهٔ پهٔ کورونو کښې کال پهٔ سخته تېرولے شو ؛ چې یو به یې لهٔ کوره ووت بل ته به یې خامخا پهٔ سل دوه سوه روپۍ پورته کرایه ورکاوُ ، ځکه د دهٔ کوارټرې همېشه د ورځې پهٔ اوچت نرخ پهٔ کرایه ورکول کېدې .

یو وخت چې خالی شوے کوارټر پهٔ زر روپۍ ورکړ طبعه یې پخوانیو کرایه نشینو ته خړه شوه چې لهٔ پنځهٔ سوو نر اته سوو کرایه باندې پکښې پراتهٔ وو ؛ خصوصاً هغهٔ ته چې لا دوه کاله پخوا پهٔ نرخ پکښې مېشتهٔ وو او صرف د میاشتې پنځهٔ سوه یې ورکولې . پخوا یې هم ډېر ځله جمروز ماما ته ویلی وو چې سړے مجبور کړه چې کډه واخلی ؛ سړے نهٔ ووت ، بل ځای یې پهٔ دومره لږه بارهٔ نهٔ لېد له لهٔ قانونه یې استفاده کوله ؛ د دوی یوه نیمه ترخه خبره یې هم پهٔ ډال اخیستله او پهٔ کوارټر کښې یې سترګې خړې کړې وې . خان ته سودا ورولوېده چې هسې نه جمروز ورسره جوړ راغلے وی څهٔ به نهٔ ورته وایی ، باید سړے تلو ته مجبور کړے شی ، لږ نه د میاشتې پنځهٔ سوه د پخې تفاوت دے ، څهٔ د مور زو کړے مې دے چې ورته ګورم ؟

بله ورځ یې جمروز پهٔ بل کار پسې واستاوهٔ ، خپل ورارهٔ یې پهٔ

موټر کښې راوست او له لرې يې هغه کورته ګوته ونيوله ورته وې ويل :

ـ نن به يې تر ماښامه لس ځلې ور ورو هې او په راز راز پلمو به يې پوزې ته رسوې چې وتلو ته جوړ شي خو ګوره لانجه ورسره جوړه نه کړې .

هغه ومنله او خان ولاړ ، پخپلو نورو ماتو ګوډو پسې .

هلك ورغی ، ور يې په زوره زوره ووا هه ، چا د وره له شا ورته وويل :

ـ څوك يې ؟!

ده وويل :

ـ زه يم ؛ د خان سړی .

هغې ورته وويل :

ـ څوك نشته ، څه وايې ؟!

ده وويل :

ـ غوارم چې د بجلۍ ميټر ، د غسلخانې شاور او . . . وګورم .

هغې وويل :

ـ مازيګر راشه چې خاوند مې راغلی وي .

ده وويل :

ـ زه هر ساعت نه شم راتللی .

هغې وويل ::

ـ درته وايم اوس څوك نارينه په کاله کښې نشته ، ورنه شم

درخلاصوي .

ده وويل :

— زه خان ته د درواغو حال نه شم ورورې .

هغې په قهر ورته وويل :

— چې داسې ده نو ولاړ اوسه .

سړي لاړ او نيم ساعت وروسته بيا راغي ، بيا يې د ورهٔ له شاهغه سوال او ځواب سره وکړ . په دې توګه تر بېګا پورې څو ځله د دوی د خولو خوند سره بد شو چې البته وار په وار يې خبرې تاوجنې کېدې او بدی ته سره رسېدې ؛ مازيګر د خان وراره ورته وويل :

— چې دومره په ستر مېن ياست ځان ته خپل کور جوړ کړئ ، يا داسې ځای واړوئ چې نايك يې د خپل مال په پوښتنې پسې سر نه ګرځوی .

ښځې ورته وويل :

— ډېر سپك او بې ناموسه بنيادم يې ، که موږ داسې پوهيدې چې په قباله دې راکوې نه به وو ورته راغلي ؛ درته وايم چې څو مې خاوند رانه شی ور نه شم درته خلاصولی ، خدای دې وکړي چې ور په ډېرو وهلو وهلو درې ورې کړې ؛ بلا مې هغه توره په تا پسې او ستا په ورهٔ پسې ، خو چې خاوند مې راشی ورته وبه وايم چې په ميدان دې واړوی خو چې د ستا غوندې سپك سړی ژغ نه اورم .

د خان وراره چې دغې خبرې ته په تمه ؤ ولاړ او خان ته یې حال ووایه ، د واړو په خټ خټ وخندل او خان وویل :

ــ ارمان چې جمروز د کلي سړی او لوستی بنیادم دی شل کارونه مې نور ورپورې سمبړي که نه زه به د ده په سرپټوب څه کوم ، وخته به مې ورته ویلی وو چې یار په د ومره خدا ترسی چېرته غټ جومات جوړ کړو ، موږ له بزرګانو کار نه شو اخیستلی نه کته وته په بزرګی او خوش اخلاقی کېږي ، که کېږدی بزرګان به د بلډنګونو خاوندان وي او ده به زما لاس ته نه کتل .

سبا چې جمروز ماما خبر شو هغه ګاونډی موټر راوستی او کډه یې بار کړې وه ، که هرڅو جمروز ورته عذرونه او زارۍ وکړې او ویې ویل چې بیا به ورسره داسې سپکه وضعه نه کېږي او اتفاقاً زه یو پېرون چېرته تللی وم . هغه نه منل او ورته یې وویل :

ــ علاوه پر کرایې مجبوریت نه لرو چې ستا د سر دوعا او ستا د نوکرۍ برحالی هم پخه وخته غواړو چې که ته نه یې هسې نه بیا د خان بل نوکر ور راووهي .

جمروز ومنله چې په زور کلی نه کېږي ، په تش شوي کوارټر کښې وکرځید ، هرڅه په ځای وو ، د یوې شپې کرایه او د بجلی احتمالي محصول یې تری کوټو ته کړ او په خدای یې وسپارله چې نهه بجې خان راغی جمروز ته یې وویل :

– ځرنګه شوه ، نن څوک کومه کډه تلو ته نه ده تیاره !؟

جمروز وویل :

– ولې نه ، لاړه .

خان په خوشحالۍ وویل :

– ګوره جمروزخانه !! تا په پنځه شپږو میاشتو کښې تنګ نه کړې شو ، ځوانانو یې په یوه ورځ کډه ور په سر کوله شی .

جمروز وویل :

– که مراد هسې تنګول وي زه خو وایم چې له دې په هیستنه چې هر کور رانشیږي وره ته به یې جندره واچوو او هیڅ‌اته به یې نه ورکوو ؛ له دې نه څه جوړه شوه چې ما په څومره محنت د پنځه شپږسوو روپیو کور په زر روپیو ورکړه او وراره دې پسې واخیست ! علاوه په دې نن نورو هم په دې وضعه بده منلې وه ، په زاریه منت مې راتسم کړل .

خان په حیرت ورته وویل :

– اوس کوم کور تش شوی دی ؟

جمروز وویل :

– هغه‌چې ورمه ورځ مې د میاشتې په زر روپئه ورکړی و .

خان وویل :

– جمعه ګل دې خدای خوار کړي پخپل لاس مې هغه بل کور ورېښولی و .

جمروز وویل :

– هغه څهٔ کوم دے ، لهٔ لرې به دې کوته ورته نیولې وی ، ځنګ پهٔ ځنګ کورونه دی . خو زهٔ وایم اصلاً بنبهٔ کار نهٔ کوې ؛ لږ دې وی تل دې وی ، پهٔ عزت او آبرو دې وی .

خان پهٔ غوسه ورته وویل :

– چې د عزت او آبرو د ووړې غوټۍ په چوکه یې غواړې .

جمروز وویل :

– زما هم دغه یقین دے چې ستا کوم نشته ؛ د خدای پامان !

# د صدر مېلمه

شیخ صاحب چې د دوکان پرانیستو شاوخوا یې سترګې وغړولې ، هرڅه ځای په ځای وو، دا وه په خپل ځای کېناست ، وخت کافي و، د تل په دستور یې خپله پاته وظیفه پای ته ورسوله او چې دوعا یې وکړه د کور ضروریات یې له ځانه سره وشمېرل ؛ د دوو ماشومانو یې د نوي ټولګي لپاره کتابونه پکار دي یو ماشوم یې د سکول جامې نه لري ، د لور یې پښې ېبلې دي او په کور کښې د ورو قدر وړه نه دي ورپاتې . فکر یې وکړ چې تر اته نهو بجو څه سودا وکړي لومړی به وړه واخلي چې کېدو په هرڅه مقدمه ده ؛ د ماشومانو ضرورتونه به د ماسپښین له لمانځه وروسته کوري هغه هم که یې سودا وشوه او پیسې لاس ته ورغلې .

چې یو دوه غوړپه د شېدو چای یې تر ستونې تېر کړې بابو اشنا یې راغی ، له روغبړه وروسته د دوکان په خوله کښې کښېناست ، ورځپاڼه یې ورته ونیوله او ویې ویل :

ــ شیخ ما (شیخ ماما) دا اشتهار دې لوستي دی !؟

شیخ اخبار ته لاس کړ او ویې ویل :

ـ په خدای د کور ټك پوك او د ماشومانو ځمونو هرڅه رانه هېر کړي دي ، اخبار خو هم په ډاډه زړه لوستل کېږي ، خو دا ووایه چې بیا د څه اشتهار دے ؟!

بابو وخندل او ویې ویل :

ـ داسې دې ځان ناکاره کړے دے لکه چې هډو په پاکستان کښې نه اوسې !

شیخ وویل :

ـ بابو صیب ! یو د اولادونو نوکر به لا څه خبېږي ؟ . . . له سهاره تر ماښامه مې وینې چې سترګې مې لارې ته سپینې شي او ژبه مې د کوڅې له ماشومانو سره په خبرو خبرو وېښتنه وکړي خو باور وکړه چې حساب ورته کوم د اولاد سر او تن مې نه شم پټولے چې جامې یې ښویه کړم ، ځپلې یې نه وي ، چې ځپلې ورته اخلم کتابونه یې نه وي ، چې د هغه غمه کوم یو پکښې بیا ناروغه شوے وي ؛ ډاکټران خو خدای وبخښه راشه که یې ګورې ! په دې ګرانۍ کښې به سړے اول د څه شي غم وخوړے شي چې اخبارونو ته وزګار شي ؛ بله دا چې یوه نیمه دوه روپۍ په اخبار ورکوم ولې چینۍ یا غوړي کور ته نه وړم چې . . . .

بابو خبره ورغوځه کړه ، ویې ویل :

ـ د غه کیسې دي چې مشرانو بلنه ورکړې ده او نن یې په چوك یادګار کښې د عامې جلسې اعلان کړے دے .

شیخ اخبار نالوستے بېرته ونغښت او ویې ویل :

ــ مشران لهٔ مرو گېډو خبرې کوی ، څهٔ پوهېږې چې دا نن کهٔ زهٔ جلسې ته لاړ شم زما پهٔ بال بچ به څهٔ تېرېږی ؟!

بابو وويل :

ــ درست کال يې وهو نهٔ پوره کېږی پهٔ يوهٔ ورځ به څهٔ پوره شی ؟!

شيخ وويل :

ــ ټيک وايې خو چې د نن ورځ راکړه نهٔ وی او غرمې ته مې اولاد نهر کښېنی دا به سمه وی ؟! بله دا چې کهٔ نن نن ماشومانو ته کتابونه نهٔ واخلم سبا به يې پهٔ سکول کښې څهٔ حال وی ؟...

بابو وويل :

ــ شيخه ! پهٔ تا هم لکه چې يد باد لګېدلے دے ، پخوا خو دې دومره زړهٔ تنګ نهٔ وُ ، چې جلوس به وتلو تهٔ به يې پهٔ سر کښې روان وې ؛ نهٔ پوهېږم څهٔ دربانديې شوی دی ؟!

شيخ ورته وويل :

ــ پخوا يو سر دوه غوږه سړے وم ، بيا چې مې وادهٔ وکړ ورور مې راسره وُ ، کهٔ زهٔ جېل ته هم تللے وے کور ته به مې زړهٔ نهٔ وُ راختلے ؛ اوس يو زهٔ يم او نيم درجن وارهٔ ماشومان ، پهٔ ځان خو حرام شه کهٔ به اړ يم ، دا د خدای مخلوق به هم څهٔ وبال لری کهٔ څنګه ؟!

بابو وويل :

ــ شيخ ما ! پخپله تر ما ښهٔ پوهېږې چې رازق مطلق خدای پاک

دئ، چې خولې اوګېډې يې راکړې دي روزي به هم راکوي .

شيخ وويل :

ــ بېشکه چې رازق مطلق خداى جلّ علىٰ شانهٗ دئ خو بنده هم بايد څهٔ لاس پښې ووهي ؛ پهٔ تيارهٔ چاته لهٔ اسمانه پخې ډوډۍ ښـــهٔ رااوري .

بابو وويل :

ــ لنډې اوږدې يې پرېږده ، وخت تېرېږي ؛ دا ووايه چې يار يې کهٔ دې بس کړې ده ؟!

شيخ وويل :

ــ چې توره ږيره مې درسره پهٔ يارۍ کښې سپينه کړه ، ځې جبلونه مې درسره وزغمل ، چې پهٔ لاتې چارجونو مې هډونه نهٔ وترهېدل چې پهٔ سرو ګوليو مې سترګې نهٔ وبرېښېدې ، چې د نورو به مزې وې او موږ به پهٔ کلونو کلونو لهٔ لرې ورته کتل ، پهٔ هغهٔ وخت کښې چا شيخ نهٔ ولېد چې پهٔ زړهٔ يې ترهه راشي نن خو لا د کرارې کرارۍ جلسه ده ؛ خو يارهٔ واې يار ته حال وايه پردي ته لاپې کوه ؛ ما د زړهٔ خبره درته وکړه .

بابو وويل :

ــ کهٔ دا سوچ کوې چې موږ ته به د سرکار لهٔ ګوره راځي او هرڅهٔ به راکړه پهٔ درغړو وي درته وايم چې تېروتے به يې ، هرچاته چې ګورې د غه شان پخپلو خولو کښې ډوب دي ؛ خو ګوره قام اولس هم پهٔ سرې حق لرې او . . . .

شیخ خبره ورپرې کړه :

ــ ته رښتیا وایې خو زه دا نن نن تر چارې لاندې ساه باسم؛ زما غوندې مجبور سړی به د پارټۍ له خوا هم معذور وګڼل کېږي.

څه شیبه د شیخ انکار او د بابو اصرار، په نتیجه کښې بابو غښتلی شو، د شیخ احساسات یې راوپارول، دوکان یې وتاړه او جلسې ته ورسره روان شو.

شیخ په ونه منځ میانه، په عمر پنځوس دوه پنځوس کلن د لوېې ږیرې خښتن و چې پکښې سپین لګېدلي وو، د مخې دوه غاښونه یې هم وتلي وو چې دی یې د ځوانۍ له ټکه اوښتی ښکاراوه، ډېر کاله یې د خپلې پارټۍ په جلسو جلوسونو کښې "زنده باد" او "مرده باد" ویلي او ډېر څله جېل ته ننه ایستل شوی و.

هرڅه بابو چې یو وخت په کومه سرکاري محکمه کښې بابو و بیا د سیاسي مخالفت په وجه بې وخته متقاعد (رېټایرډ) شو، دی هم د پارټۍ فعال غړی او پخوانی مخلص و، د ده عمر هم د پنځوسو شاوخوا و خو ځواني او طراوت یې تر ډېره حده ساتلی و، لوړ دنګ او سور سپین سړی و چې ناپېژندوی ته به تر څلوېښت کلنۍ اوښتی نه ښکارېده.

شیخ جلسې ته روان و خو زړه یې کورته ختلی و، چې نور د ولې یاران به یې ورسره مله شول تر یوه ځایه به یې د جلسې په شوق د اولاد لوږه او مجبورۍ له زړه ووتلې او داسې ډاډه

به روان ؤ چې تا به ویل هیڅ اړتیا نه لري او هیڅ مجبوریت نه پېژني، خو ژر به د نهر کاله تش د سترخوان ورپه زړه شــو په خوله به یې مهر ولګېد، او د خبرو سلسله به یې له ذهنه تر ژبې قطع شوه .

چې جلسې ته ورسېدل ډېر خلك راغونډ شوي وو ، مشران ستېج ته وختل وار په وار یې له خولو څکونه وغورځول ، د جهان بدی یې د وخت په حکومت وروتپلې ، د "زنده باد" چیغو فضا په سر اخېستې وه خو ژرنګه چې غونډه مسالمت آمېزه غونډې وه د پولیسو له خوا نه لانتي چارج وشو ، نه یې ګېس وښنده نه یې ګرفتارۍ وکړې .

شیخ په خبرو نه پوهېده، که هرڅو متوجه شو چې یوڅه خو پوه شي اما د کور او اولاد د لوږې تصور به هرڅه ورنه ګډوډ کړل ، چې بابو ته به یې وکتل زړه به یې وغوښتل چې په ښټ یې خوله ورولګوي ؛ د ظالم زوی نه د دهٔ مجبوریتونو ته کتل نه یې د دهٔ د ماشومانو لوږې ته ، راټې وست چې جلسه ده ؛دایې جلسه ؛ جلسه به څهٔ کړي چې نه دوی ته ډوډۍ ورکولی شي نه جامې ....

چې لحظه به وتله د شیخ په زړهٔ به تیارهٔ راتله ؛ یو وخت د جلسې په جوش کښې بې ارادې پاڅېد ، ستېج ته وروخوت، نطاقي یوې خوا ته پورې واههٔ ، مېکروفون ته ودرېد او ویې ویل :

عزیزانو !! زهٔ بنه پوهېږم چې په مونږ تاسو کښې د مختلفو

سویو او مختلفو نظریو خلك شته او دلته هم وړ وړ خلك راغونډ شوي یو ، د چا هره خوا پوره ده ، د ژوند ډیر ارام یې تنه نه پوره شوي او د دماغي تفریح لپاره الله کوله جوړول خوند ورکوي ځینې تروېش په تالا خوښ دي ، د کرارۍ ډوډه یې ترستونی نه تېرېږي ، په دې ماجرا غوښتنو خپلې غریزې تسکینوي ؛ ځینې ځینې له ځانه جهانه بېخبره چې هېڅکله یې واقعیتونه نه دي پېژندلي لکه سېل وړې خس وخاشې بې ارادې د بل په خوښه درومي ؛ ځینې داسې هم شته چې اولاد به یې دا اوس اوس وږي ناست وي ، په کور کښې به یې دومره وړه نه وي چې خرڅ یې کړي ، دوی هم په دې ګومان چې جلسې به مو د غیبو په خزانو وربرابر کړي ، عادي ژوند ته شاکړي او راشي د هغه چا په "زنده باد" او "مرده باد" یې ستوني وچ شي کوم چې ددوی له بنو او بدو سره هیڅ وړ دلچسپي او مینه نه لري .

ورورېنو !! ترکله به اوبه تر بوسو لاندې بیایو ؟! دا چې موږ پیاروي او زموږ د مشرۍ تېکه داران دي او هر وخت یې حکومتونه په موږ وېرولي دي بېګا به له ګورنر صیب سره د ډوډۍ په مېز تو کې ټکالې کوي او زموږ په زیرو پورې به په ګډه خاندي او ولې به نه خاندي چې نه یې وږي تمام شوي دي ، نه یې د زامنو د سکول کتابونه او جامې په مخ کښې دي ، نه یې لوڼه لوڅې پښې ورته ګرځي ! که غم دے زموږ تاسو غم دے . . . .

عزیزانو !! سوچ وکړئ ، که بد وایم خوله مې راماته کړئ ! که دولتونه

راشي لاړشي ، که حکومتونه بدل رابدل شي لکه چې ډېر بدل رابدل شوي او مـوږ تاسو د سر په سترګو ليدلي دي زموږ به پکښې څه بدل شي ؟ آيا بيا به هم د خرو په برخه لېږه نه وي ؟ آيا بيا به هم دا بنګلې موټرونه او لوړې بنګلې د خداى د بختورو نه وي ؟ آيا څوك به د سکولونو فيس معاف کړي ؟ آيا څوك به د کوروبو د وکانونو کرايه د خداى په لار برابر وټاکي ؟ آيا څوك به د نرخونو د بې موجبه لوړېدو مخه ونيسي ؟ او آيا دا څه چې زه وايم نو اوسه کوم مشرصيب په کومه جلسه کښې ورته ګوته نيولې او کومه طرحه يې وړاندې کړې ده ؟؟ آيا کوم داسې قرارداد پاس شوے دے چې د ولس ستونځې وړاندې لرې شي ؟ که هسې په کرسيو او په قدرت جنجال وي زموږ يې وړاندې څه ؟ يو عمر مو د بل په خوله جېلونه وليدل ، وهل مو وخوړل ، کار کسب رانه پاتې شو نتيجه يې څه وخته ؟ خداى ته وګورئ راځئ چې سوچ وکړو بيا څه وغواړو او هغه څه وغواړو چې په غوښتنه ارزي . . . . داسې حکومتونه ، داسې حزبونه ، داسې مشران او داسې جلسې جلوسونه چې په هغو کښې د چا بې ګناه ماشومان تش شکاره ته وچې شونډې ناست پاته وي ، چې د چا اولاد ته د سکول جامې او کتابونه نه رسېږي د چا د لوږو سرونه او بښې نه پکښې پټېږي دا به څه کوو ؟ بايد نو هر څه د مخه هغې فيصلې ته ورسېږو چې موږ په سرپيو ګډ کړي او د سرټوب لارې ته مو ورسېځ کړي . . . .

شيخ په هيڅ ا هم چوسه نه وکړه ، نه يې په حکومتونو سترګې پټې کړې نه په مشرانو اړ شو خو د هرې خبرې په پای کښې به يې د خپل کاله لوږه

د سکول فیس ، جامې او کتابونه د ترجیع بند غوندې تکرار ول، یو بابو پوهېدهٔ چې د شیخ کوم ځای خوږېږي ، نورو ته د دهٔ خبرې ډېرې پاروونکې ښکارېدې ، چا به فکر کاوهٔ چې شیخ د پارټۍ له مشرانو ګیله من دے ، په ډله کښې ډلګۍ جوړول غواړي ، چا به ویل شیخ یو رښتینے فداکار او جذباتي سړے دے د پارټۍ په رګونو کښې سړې شوې وینې بیا راتودول غواړي .

چې جلسه ختمه شوه خلکو شیخ په اوږو راواخیست او د "شیخ رحیم شاه زنده باد"، "نر شیخ زنده باد" او "رښتینے لیډر زنده باد" چیغو د پارټۍ د مشرانو پدل ورمات کړو .

د پارټۍ د ښار صدر خپل موټر ورته ودراوهٔ او شیخ ته یې ور بېړته کړ چې ویې رسوي ، له شیخه لوی سړے جوړ شوے وُ خو دے نهٔ پوهېدهٔ چې په کاله به یې ورځ څنګه تېره شوې وي ؟ کهٔ یې ماشومانو ته مور د ګاونډي له کوره څهٔ وړهٔ په پور راوړي وي هم ښهٔ کهٔ نه نو . . . .

بیا به ورپسې زړهٔ شو چې سبا ته به یې ماشومان د هیډ ماسټر ځواب څهٔ وايي ؟ آیا دا دلیل به یې څوک ومني چې پلار یې د قام د غمخورۍ لپاره کور، اور او کار کسب ته شا کړې وه په داسې حال کښې چې د هیډ ماسټر غوندې د قوم په خدمت ډېر مشهور کسان په مړه خېټه ساړهٔ سیورۍ ته ارام ناست وو خو د دهٔ خپل اولاد وږے پرې اېښے وهٔ نو کهٔ یې کتابونه نهٔ وي راوړي ترسره جار .

صدر چې د موټر ور ورته خلاص کړ ، شیخ ورته د لارې ملګري پله کړل

د صدر اصرار و د شیخ انکار ، خو بالاخره کله شیخ هرڅوځان په یوه خوا بله خوا کړ صدر نه پرېښود په موټر کښې یې کښېناوه ، په لاره صدر ورته وویل :

ـ شیخ صیب ! خبرې دې ډېرې پخې وې ، په اولس یې ډېره اغېزه وکړه ، موږ هم ومنلې ، اوس باید سره کښېنو او ستا په منصوبه خبرې وکړو ؛ ما د پارټۍ اهم اراکین بېګا ته رابللي دي چې ستا په حضور کښې ورپاندې غور وکړو .

شیخ ورته وویل :

ـ نور تاسو پوه شئ کار موپوه شه ، ما د بازار په خوله کښې کور کړی چې اولاد مې شپې ته وږے پاته نه شي .

صدر وویل :

ـ موږ هم د غه د لوږو تندو احساس راغونډ کړی یو ، دقام غم دے کله نه نو هغه ستاخبره زما خله لږ دی ؟!

شیخ وویل :

ـ زه پخپله د نن لپاره سملاسي چاره ستا په کاله کښې نه وینم د ورو په دوکان کښې یې وینم او د کتابونو چاره لومړے پخپل دوکان کښې چې څه وکړتم بیا په قصه خوانۍ کښې وینم ، د غسې مې ګڼه نور مشکلات .

صدر د ده په خبرو نور ګومانونه کول ، ډېر ورته ټینګ شو چې ارومرو به په ماښامنۍ جلسه کښې برخه اخلي ، خو د ده سودا کاله ته وه ، د هغه دا خیال نور هم په یقین بدلېده چې شیخ په څه خبره کیله من

شوے دے باید ښکاره شی چې دګیلې ځای یې کوم دے ؟ شیخ دکار سړے او پخوانے فداکار دے باید پخلا وساتل شی ! علاوتاً ښه خوله ژبه لري نن یې جلسه درسته وخوځوله ، کهٔ خوابدے شو ډیر تاوان یې رسیږی . ځکه یې نهٔ پریښود ، کهٔ شیخ پهٔ سوکاریتو چوک کښې هرڅو ښې ووهلې صدر به ورته وخندل او ویل به یې :

— کهٔ مې وهم وهې نهٔ دې پریږدم حتماً به راسره ځې !

شیخ یې لهٔ ځانه سره بوت ، څهٔ شیبه وروسته د موټرونو بهیر راوریسید ، شیخ یې پورته کښینولے وُ چې یاران به رارسیدل لومړے به یې د شیخ خوشامندې کولې ، خو شیخ پهٔ بل عالم کښې وُ . د مازیګر چای لهٔ کبکونو پیسترۍ اوران ران کلچو سره پهٔ میزونو کیښودل شو ، د شیخ هیڅ شی ته لاس نهٔ ورتلو خود صدر او یارانو پهٔ ډیره غوښتنه یې یوه پیاله ورپورته کړه ، چې لومړے غوړپ یې کاوهٔ وچې شونډې ماشومان یې سترګو ته ودریدل او شنه شهیده ښځه یې لیده چې نهر اولاد ته د ناامیندۍ غمځې اوښکې څڅوی ، لاس یې وپوریدهٔ او ډکه پیاله یې لهٔ لاسه ولویده ، چای یې پهٔ ګریوان ورتوی شو چې تن لمنې یې لوند کړې ، برسیره پهٔ سوځیدو او لندیدو د خجالت خولې لاګوښې پرې راماتې شوې ، یارانو ته چې د دهٔ احساسات انسانی او سیپځلی ښکاریدل یوهٔ هم دا نهٔ منله چې پهٔ ظاهره ښویه سړے به د ومره پریشان وی او د کور غړی به یې پهٔ وچه ډوډۍ هم نهٔ وی قادر .

د پیالې ماتیدو د دهٔ د تلو اراده مخکوب کړه ، پهٔ محفل کښې یې لهٔ محفله لرې چکر واههٔ خو د تلواجازه یې نهٔ شوے غوښتے ، نهٔ پوهید

چې دا ډېر ښار خلک چې د تفنن لپاره مبارزې ته راغونډ شوي دي څرنګه پوه کړي ؟ . . .

چې د ماسخوتن د ډوډۍ مېز ته ودرېدل ، نور په کبابونو په چړګانو ورغوړېدلي شول ، د ده مخې ته بیا هغه خپل نهر ماشومان ودرېدل چې ډوډۍ غواړي او مور يې له تودو او ښکو پرته هيڅ هم نه ورته لري ، خو ظالم پلار يې تللی دی په مړه خېټه له حکومتونو سره د غرېږ وهي او ممکن د ده له لوري لا کوښښ پرېشان وي چې شېخ به د حوالاتو په کومه توره خونه کښې د مجهول سرنوشت په انتظار پروت وي ؟

که صدر هرڅو خواهش وکړ د شېخ لاس يوه نعمت ته هم ورتېت نه شو ، يا رانو د علت پوښتنې ترې وکړې ، شېخ چې په سه نه شو پوهولی ، پا څېد او ويې ويل :

ــ زه د داسې ښکلو ډوډۍ نه خورم چې زموږ په سر سودا کړي کوي او ځانونو ته د خدای نعمتونه برابروي ، زه نور له داسې خلکو سره همنوايي نه شم کولی کوم چې زما په ژبه نه پوهېږي او زما لوږې تندې ورته ټوکې مسخرې ښکاري . . . .

چې دا يې وويل بې سواله بې خوابه روان شو ، صدر هم نور سر ورپسې نه وګرځاوه ، شېخ په ونه يې کېده ، ستړي ستومان له يوه عالم اندېښنو سره د کاله په خوا روان شو ، له بده مرغه لاره هم اوږده وه ؛ بايد تخميناً شلور پنځه ميله لار پلې ووهي ، خو چې کور ته ورځي څه به وروړي او څه به وايي ؟ ؟ په لاره کښې يې له ځانه سره وپتېيله چې نور به د سياست په ځای د وکانداري

کوی او په هغو یه نه غولیږی څوك چې د لویې تصور هم نه شی کولے؛ خو د ښتیږ عمر قربانۍ یې هم له زړۀ نه شوے ایستلے .

# څپې

# چا ته به يې ووايم

سوړ مېنځ و ، د پاڼو د ژېړېدلو ، وچېدلو او رژېدلو کيسې زړې شوې وې ، يوې څانګې هم د طراوت او سرسبزۍ نخښه په لاس کښې نه لرله ، هرڅه چې څوړېنې وربخښلې وو د مني په تاراج کښې تللي وو . بيا به هم چې د "ناوړ" له څوکو کوم رېږدېدونکې باد ممو ته راتيت شو وخت وچې کړې څانګې به يې يوه پر بلې اړولې تا به ويل چې د سرکشۍ خيال يې له سره باسي او د عمر توبه وړکول غواړي چې بيا له پسرلي سره سر نه وخوځوي .

د سټونځو او سټړياؤ ورځې وې ، هر سړی د ژمي په فکر کښې و ، چا بوټي ، څوځ او پچې خوشايي پوره کړې وو ، د چا لا څه کمبود وو ، د غسې چا د ژمي وړه کړې وو ، د چا په ژرنده کښې وو ځينې به لا ممکن اوس هم په غله داني پسې ګرځېدل چې په پوردار يې پيدا کړي ، لاندې هم د چا مخ په وچېدو وو ، چا اوس کول .

د کال لومړۍ واورې غرونه سپين کړي وو چې د ژمي د ژر راتلو وېره يې پيدا کوله ، د واورو او کنګلونو وخت رالنډ شوی و

هر څوک د خپلې نیمګړتیا په پوره کولو پسې ستړې وُ ، له سهاره ترماښامه له یوې کلا بلې ته او له دې کلې هغه کلي ته د بنیادمانو چرچیر وُ ؛ لکه د دانې په تلاش پسې ستړې مېږي تلل او راتلل ، ځکه چې نیمګړتیاوې یو له بله پوره کېدې . "کره باغ" سوم او وچ وطن دے کډ اولس بس یو څو کارېزونو ته اړولې دی ، کارکسب هم پکښې نشته ډېره برخه خلقه په نورو سیمو او ښهرو ملکونو چلېږي ، ژمے یې اوږد او آذوقه پکښې کمیابه ده .

حاجي صاحب دوه ساتلي مړان د لاندې لپاره حلال کړي وو د کور مخ ته یې د ابېلو په غرض په اوږ اړولي ، خپلوانو ورسره مرسته کوله او ماشومانو بدوګې په اور توغولې نیم پاخه نیم اومه یې خولو ته نیولې ، د ابېلو په تماشه کښې یې تورې اوبه له جوخښکو رابهېدلې په ګرېوانونو او لمنو یې تویېدلې .

د جومات خادم (هغه څوک چې په ژمي د جومات د تودولو وظیفه په غاړه لري) ورته خېرمه لمر ته ناست وُ چې لاسونه او مخ یې په وازدو غوړ کړل د ښښو له چاوده یې په ژاولو تیلي ښوکران هیسته کړل ، د پسونو د ابېلو په انتظار کښېناست ؛ د ده لاسونه هم سرې هوا او په سړه هوا کښې د ترخو او څوځانو وهلو او غونډولو پوره ورځېږه کړې او له چاودو یې وږدله کړي وو ، چې لاس به دې ورکړ تا به ویل چې سوهان مې په لاس کښې ونیوه خو د ښښو چاودې یې ډېرې ژورې او لوېې وې ، خصوصاً د پوند و .

خادم ته کلیوالو د خدمت په بدل کښې د کال یو نیم خروار غنم چې

د "کابل" ښېښته سره کېږي په غاړه اخېستي وو ؛ علاوتاً د خیر خلک هر چېرته شته نو هم لږ ډېر لاس ورته نیول کېدهٔ ، ډېرو کورونو د ماښام پاسته نهٔ تري سپاوهٔ .

د غزني په ولایت کښې دستور دے چې د چالاس خولې ته رسېږي خامخا به کهٔ نور خیر خیرات نهٔ کوي هر ماښام د تنارهٔ له سره یو پاسته د مستحق او نادار کالهٔ ماشومانو ته ورکوي چې په دې توګه کهٔ په کلي کښې لس کوره د ګذارې وو دهٔ ته لس پاستې راټولېدل چې تر ډېره حده یې د غلې احتیاج رفعه کېدهٔ .

خادم ډېره په خواره مزدوري کښې سپینه کړې وه ، په ځوانۍ کښې به تر "کلکتې" او "اسامه" په غریبه پسې ورک ؤ چې دهٔ به بېسې کیسې کولې ، اوس د کور او بال بچ خاوند ؤ ؛ علاوتاً د لوې هېوادونو مزدوري په ډاډه زړه او پوك لاس کېږي ، د دهٔ دغه د کلي خادمی ترخوله تېره وه ، تر مرګه رسېدل دي ، له لوږې څوك نهٔ دي مړهٔ شوي چې د ے مړ شي ، په لږه ډېره یې د ے نهٔ د ے او چې نصیب نهٔ وي بې نصیبه ډوډه چا هم نهٔ ده خوړلې .... دا خبرې به دهٔ د خپل نوهٔ د تسل دپاره کولې او له زړهٔ یې کولې ځکه چې د دهٔ یقین هم دا وهٔ چې بښې بدې د خدای له جانبه دي ؛ کهٔ خدای وغواړي په نهٔ کرلو نهٔ ربېلو درمندانو او پټو خزانو دې اړېلے شي او کهٔ نهٔ وغواړي خولې ته ورې ډوډه هم نهٔ پهٔ برخه کېږي .

چې حاجي اکا پسونه وابیل او په هدهد کولو یې لګیا شو خادم لږ څهٔ د لمر توته ورجلا کړو ، په لرګي یې وتوهېله او چې اور ته

یې ونیوله ویې ویل :

— والله حاجي صاحب ! دغو چاودو میراث مړیو نور په پښو ښخو له کړے یم ، چې ورځ وځی په اوږده په پسارهٔ سره غزیږی ، نه وړباندې سم ټک کولے شم نهٔ ارام خوب ، چې اودس کوم د اسمان ستوری راباندې وشمېږی ، ژاولې مې ورکړې ، په واسلینو مې غوړې کړې ، ومې کندولې خو په هیڅ توګه یې خولې نهٔ سره ورغلې ، مجبور شوم چې ویې دا غم ؛ وایې د لسم داغ ورته ښه دے .

حاجي وویل :

— بله چاره نهٔ لری ، په تېره چې د چا غوښه ترخه وی مګر د لسم په داغ سره ورشی ؛ اوګوره اوس لا ژمے چېرته دے ، که یې غم نهٔ وکړې کوږ به دې کړی !!

خادم وویل :

— زهٔ هم له ژمی ډارېږم .

حاجي وویل :

— ښه تۀ زما لاندے ناوخته شو ، لږ غټ کنډك د رجلا کړه ، کوز یې د رته کېږده ، بیا په ژمی لمان چېرته دی ؟

خادم وویل :

— خدای دې په مال په اولاد برکت کړه ، ایمان دې روزی شه ، موږ ته دې دغه نیت هم بس دے .

حاجي وویل :

— خدای دې له غیبه چاره وکړه سره له موږه !

خادم چې د لمې تونه وړپرې کړو او د پګړه په شمله پورې يې غوټه کړو پاڅېد چې لاړ شي، حاجي ورته وويل:

ــ خداى مېنې کښه به لاړ شې، لرمنونه مو پاخه کړي دي چې د مېړانو له څوکرېيلو وړخلاص شو دوډۍ به راسره وخورې.

خادم وويل:

ــ خداى دې دوډۍ ډېره لره، څه تکليف به درکوم ؟!

حاجي وويل:

ــ په يوه تا به نه قيامت کېږي، هرڅوك خپله روزي خوري.

کليوال خلك د غرمې دوډۍ په تېم نه خوري، له لسو تر يوولسو دولسو بجو چې هر وخت وږياندې پېښې شول غم يې کوي؛ د وږي هم تر لسو لس نيمو بجو د لاندې غوښې راڅرولې وې او کټو هم پخه وه، نور به يې څه ته کتل ؟!

خادم چې د حاجي کره کښېناست، د دسترخوان وغوړېد، د لرمانه د قورمې په تاليو برسېره څه تناره ته وهل شوې بوټې او څه په غوړيو کښې سرې کړې غوښې يې هم راوړې، پخله شپېږ تنه تر ې راوګرځېدل.

د ډوډۍ په وخت حاجي ورته وويل:

ــ عثمان اکا! (د خادم نوم دے) ما ته عيسى خان يوه خبره کړې وه ما ويل زه به يې په مناسب فرصت دريادوم، خو د دنيا چارې پوره کېدا نه لري، تا ته هم معلومه ده چې نن سبا د سرکرولو ته نه وړخلاصېږو څه وکړو کور اور او سل چارې راپه غاړه دي، مناسب وخت په کوټو نه راځي چې کاله ته درغلے وے، او بله دا چې زما او ستا به څه فرق

وی ؟! پردی نه یو ، یو هم وزر یو ، دا هم ستا کور دے ، که یې دلته درته ووایم زه خو یې بده نه گڼم .

خادم په خوله کښې ژوولې گوله تیره کړه، ویې ویل :

ـــ خدای دې کور مه ورکوه ، بېشکه دا هم زما خپل کور دے .

حاجي وویل :

ـــ عیسی خان ترما تاته ښه معلوم دے چې سم سیال او د خیر سړے دے د چا په بدو نه دے رواداره ; خپلخور او روغ بنیادم دے .

خادم وویل :

ـــ هو ! خدای دې ښه ورسره وکړي ; له ما سره یې ډېر ښه کړي دي .

حاجي وویل :

ـــ عیسی خان غواړي چې له تاسره دوستي وکړي ( د غزني په مربوطاتو کښې "دوستي" د "خپشي" لپاره هم استعمالوي ) .

خادم وویل :

ـــ سم سیال دے غاړه نه ترې غړوم ; خو د ومره ده چې زما نجلۍ لا اوس د ورکړې نه ده .

حاجي وویل :

ـــ چپل خلک دي ، له خپلو سره خپلوي ده ، له سرې تبې به یې دوي هم نه وراخلي ; زوی یې په "اسام" کښې دے ، چې مالګه ورکړې کوزې به په څوړوني کښېنوي او واده کړه کال نیم پکښې وڅي څه پروا کوي ؟! ښځه طایفه ژر لویږي ، خو لوړ پرده امانت دے چې یوه ورځ له مخه یې په پرده ولاړه کړې هغه یې خیر دے .

خادم وویل :

ــ که څه زه ستا سکنې او خوا خوږي بل نه لرم ، له تا سره به مې سلا کوله ؛ بیا هم که دې خوښه وي موږ به په کور کښې وږیاندې وژغېږو .

حاجي وویل :

ــ ډېره ښه ده ، سره وژغوځ خو که لږ ډېر حال واکړې ښه به وي هسې نه چې عیسی خان . . . .

خادم خبره ورلنډه کړه :

ــ که عیسی خان بل ځای نوکر ونښلاوه زما په لور هم مېږه نه دے درېدلے .

حاجي وویل :

ــ ما داسې نه ویل ؛ ما ویل چې عیسی خان اوکه کړے یم ، نو به مې هم اوکه کړي ؛ تجلی د پرې دی خو د هغه ستا دوستی سته نه کېږي .

خادم وویل :

ــ دوه درې وارې مې د دوم په خوله رایاده کړې ده چې ما به په دال واخېسته ؛ ما به ویل خدای مې روزي رسان دے ، ورته لور سره اور ته نه اچوم .

حاجي وویل :

ــ سبا بله ورځ چې بیا دوم درشي که دې سلا شوه ورځ به ورته وتاکې .

خادم ومنله ، پوهېدې بې هم خوړلې وه ، د وعا يې وکړه او لاړ .

بله ورځ عيسی خان او حاجي صاحب له پمه سره د عثمان اکا

(خادم) په دره کښېناستل ، دره د خادم د ديوالونو خرې او تيتې

خونې خواته غوړېدلې وه . چې د خادم بشځې د چايو تور چايجوش

له نغرې راکوز کړ ، پيالې يې له تاخه راواخېستې او چای يې د دوی مخې ته

کېښود ، په خپله لاړه په خونه ننوتله ؛ د ورېږ درځې له شايې

د دوی خبرو ته غوږ ونيوه .

د ورکړې نور شرايط اسانه وو ژر حل شول ، پاته وه د ولور مسئله

چې عثمان اکا په ډېره کښې ؤ او عيسی خان تېټ ورته ناست ؤ .

خادم وويل :

— خوارې څه عيب نه دی ، خوار به يم ، منم يې ، خو له سيالی

مې څوک ايستلی نه شي ؛ زما لور ترڅاکمه ده چې نورې دې په

ځلوېښت پنځوس زره ودېږي او زه دې خپله د کل غونډې لور په لس

پنځلس زره ورکړم ؟! که رښتيا خبره شی والله که به يې نوك په

ډېرو ورښکاره کړم ؛ په دې خو نه شوه چې د خوار خادم

لور ده !

حاجي وويل :

— دا لا څه ويلی دی چې د ودان لور دې د خوار تر لور ښه وي !

خو خبره دا ده چې يو خو د خپلو د مخ خبره ده ، پردیو ته يې

نه ورکوي ـ بله دا چې د ډېرې ورباندې اخلی هغه ډېرې ورباندی

لګوی هم .

خادم وویل :

ـ لرې به نهٔ څوا دغه شپږ کال چې پخپله عیسی خان خپله وریږه ورکړه ، څو یې ور باندې واخیستلې ؟!

عیسی خان وویل :

ـ رښتیا ده چې ما شلوېښت زره وربانډې واخیستلې ، خو کوره هغومره به مې ورسره دود بایدهٔ کړې وی ، کور به مې ورکړې وی پوښ به مې ورکړې وی ، کېښنې به مې ورکړې وی ، خیال به مې ورسره کړې وی ؛ چې بېرته یې کورې واللّٰه کهٔ به لس زره هم راپاته شوې وی .

خادم وویل :

ـ تهٔ به یې لرې ، لهٔ وکه لوښی کهٔ نهٔ ښاځې هم څهٔ به وښاځې خیال به دې زړهٔ غوښت ، نوم به دې کاوهٔ . . . .

عیسی خان وویل :

ـ وینې ، شاباس !! دغه دے چې زما خبرې ته راغلې ؛ ماهم دغه درته ویل !

خادم وویل :

ـ زما لور پهٔ څهٔ ده ؟! رنده ده ، کنړه ده ، بې لاسو بې پښو ده کهٔ خدای مهٔ کړه کوم تور ور پورې شوے دے چې زهٔ به یې دخدای پهٔ جات ولاړ وم ؟! . . .

حاجی وویل :

ـ دېرې خبرې د قرآن ښې دی ، لنډه به یې خلاصوو ؛ شل زره

دې شو ولور ، هېڅ مهٔ ورسره کوه ، د دے پوه شه خيال يې پوه شه ؛ خدای دې وکړی چې پهٔ يوهٔ کميسهٔ کښې يې ولاړوی کهٔ اووهٔ شوار وزه وربانددې پړولونه وهی ؛ گيډنه يې پوه شه ، جامې يې پوه شه ، خرڅ يې پوه شه او د دے پوه شه ؛ لس زره به نغدې چغدې د کوزې پهٔ ورځ درته رډی او لس زره د وادهٔ پهٔ ورځ !

لهٔ څهٔ سرخوږي وروسته خادم غاړه کېښوده ، مالکه يې وکړه او پوزې وشوې .

څوږمے يې کوزې کښېښوله ، بل منځ ته يې نجلۍ سپره کړه ، خو د عيسی خان زوی لا پهٔ "اسام" کښې پړېوله . مياشتې کلونه ووتل ، د عثمان اکا وړې نجلۍ هم غټې او وادهٔ شوې خو د عيسی خان زوی لا پهٔ کټه وته نهٔ ؤ موړ شوے ؛ ناوې به يې کله د خسر د کالهٔ خدمت کاوهٔ ، کله به د موړ کره ناسته وه ؛ پهٔ پټه خولهٔ به يې پهٔ هر ويښتهٔ کښې دا نغمه غږېدله :

د هندوستان کټه دې زهر شه
زما پهٔ نورو زلفو سپين ولگېد نه !

# دزړه‌ر نخوره

چې لنده‌بل به نه وي کله به ژېړ وي کله وړوکی "اورازچال" به د کور شاته پروت وي ؛ په دې تفاوت چې ژېړ پیتاوی ته او وړوکی سیوری ته .

"چال" په اوزبکی ژبه بوډا ته وایي ؛ "اوراز" هم بوډا شوی او له کاره کسبه لویدلی وي ، د ژوندیو رزق یې خوري ، چې ورځ به وتله د ضعف تله یې درنېدله او دی یې نور هم په ځمکې پورې نښلاوه ؛ څرنګه چې د کتې وتې یې څوک نه لرل وچه لنده د نورو د سپي خیرات وررسیدله . یوه یې بنځه وه یوه یې پېغله لور چې هغه یې لا په کمکینې یوه زاړه موچي ته ورپه نامه کړې وه . موچي به وو د پنځه څلوېښتو شپږ څلوېښتو کلونو په عمر ؛ یوخشن ، بد خلقه ، بد رنګه او خوږجن بنیادم ، اوږده ژبې غابنونه ، څوکره بېره ، تندې پرهیدلې سترګې پلنې تورې شونډې ، ارته خوله او د افریقایانو په شان تورتېلې د مخ یوه خوا یې سوځېدلې هم وه چې په رڼا ورځ به سړی

ترې وېرېدو .

موچي ورسره ابتدايي ولوړ شل زره افغانۍ منلې وې چې په لسو کلونو کښې به يې وررسوي ؛ يعنې چې څو نجلۍ لويېږي دهٔ بايد د خسر غاړه ابستلې وي، پاته به شي وروستي ولور هغه په دوی کښې دود دے چې د خسرګښۍ د راضي کولو لپاره څهٔ مال څهٔ نغدې د وادهٔ لهٔ مصرفه سېوا ومني او ورې کړي ، بيا نو د وادهٔ سرشته نيوله کېږي .

د نجلۍ نوم "آيېنه قز" وُ ؛ يعنې ښکلې نجلۍ . آيېنه قز اوس د څوارلس کلنۍ په درشل کښې وه ، د ورکړې يې اووهٔ اتهٔ کاله وتلي وو خو موچي لا تر اوسه د ولور درېمه برخه هم نهٔ وه ورکړې ، تقاضا يې وه چې نجلۍ لويه شوې ده، دوه درې زره روپۍ به ورته برابرې کړم ، پهٔ نورو پسې دې دوی سر نهٔ ګرځوي ، وادهٔ دې راکړي ؛ ترکله به يې ګوره يې اوره ګرځم ؟!

اورازچاال نهٔ د وهره خبرو وُ ، نهٔ يې واك اختيار درلود ؛ ښځې يې دواړه پښې پهٔ يوه موزه کښې ځای کړې وې چې د خدای خدايي يوه ده کهٔ به پيسه هم ورته پرېږدم ، د ګل غوندې لور مې چې د سوړ غوندې بنيادم ته ورکوله دغه د پنځو روپيو هيله وه کهٔ نه داسې سپېرهٔ ته به والله کهٔ څوك خره هم ورکړي .

پهٔ مياشت دوو مياشتو کښې به درا تقاضا او دا ځوابونه رد وبدل کيدل چې نتيجه يې هېڅ وه .

اورازچاال يو د پسهٔ وچ کړے پوست درلود چې دا يې هم

کېلم ؤ هم تلتك ، غوټه موټه د کور خواته وربانديږ پروت ؤ د جهان ښې بدې يې کړې او د هرچانه يې لېه ترلې وو ؛ خداى خبر په دې شرايطو کښې به د ژوند څورونکې شيبې ده څرنګه او په څه انديښنو تېرکړي ؟ . . .

چې سپاره به چېرته د بزکشۍ مېلې ته تلل يا به راتلل آيينه قز به تلولې ورووتله ، د کور شاته به يې تر رنګ دېواله سر ورهسك کړ ، که به يې پلار وينې و که ويده ستړکـه نه تري کيده ؛ پوهيده چې هغه خوار د سترګو د غړولو توان هم نه لري . دې به د سپرو تماشه کوله کوم چې د ځوانۍ د سرکښو هوسونو په لمسه اوږده مزلونه د يوې لوبې لپاره نغاړه او د خطرونو ټېل ماټېل کښې د برترۍ غريزه تسکينوي د قام قبيلې ځوانان به يې کتل چې د ځوانۍ هوسونو او زلميو زړونو په غوښتنه به غوټه سپاره له کلي ووتل ، د آسونو د سوو دربې او د ورې به يې تر ډېره حواس وجلبول او ترهغه به يې ورپسې کتل څو چې به د وروستني سپاره سپاهي هم د دې له نظره ووتله ؛ د سپرو تماشې خوند ورکاوه ، زړه به يې د آسونو له شنا د شباب د مستيو سرود اوريد ، دا څکه چې "ايرکش" هم د آسونو سره مينه لـرله او د بزکشۍ مشهور پهلوان و . ايرکش يو زلمى بزګر و چې ووړه به پخپله زمکه کښې لګيا و ، او ژمى به يې د بزګرۍ پاته کارونه ورونو ته سپارل ، ده يارانو په ټوله کښې به د

بزکشیو په لوبو مشغول وُ . ایرگش بنه ځوان او ماهر سپور وُ چې پخپل تور سکاڼ آس به سپور او د سپرو په مخه کښې به روان وُ ، د یارانو به وربانده ستړګې روښې وې ، د کلی بنه آسونه درست د ده په واك کښې وو، ځکه چې د ده بنه چاپ انداز وُ ؛ هرچا به هغه کوله چې ایرگش د ده په آس لوبه وکړتی، نو هیچا ورته هیڅ هم نه سپمول له دې امله یې ژوند هم بنه په سمول وُ .

څه د ایرگش ځوانی بشکلې وه ، څه یې د پهلوانۍ او چاپ-اندازۍ شهرت وُ څه ورته د همځولیو احتیاج، چې په ګډه یې له ده نه د بنایست مجسمه جوړوله . آیینه قز هم په دغه کلی کښې لویه شوې وه ، دې هم ایرگش ډیر لیدلے کتلے وُ او د هغه د پهلوانۍ تعریفونه له ډیرو خولو اوریدلی وُ د دې زړه هم ورته خپله تنکۍ غیږه پرانیستې وه چې ورځ په ورځ یې تسلط وربانديې مخ په ډیریدو او ټینګیدو وُ . لومړے به آیینه قز هسې د ننداړو لپاره وروتله او د نورو پیغلو ناویو غوندې بس د سپرو تماشې خوند ورکاوه خو-ورو ورو دا ننداړې په قلبی ضرورت بدلیدې چې دې سترګې نه شوے ترې پټولے . ایرگش ورته ورځ په ورځ لویده او بشکلے کیدو، خصوصاً هغه وخت به یې په درستو حواسو د ایرگش بای-مینه ویده چې بیا به یې د موچی خولې ریبار لیدلے وُ یا به یې مور ورته د هغه بدمخی څه ویلی وو .

چې ژمی په وتلو شو د هوا بدلون د سپرو فکر په بله وا ړاوه ، د بزکشۍ آسونه شنو ته وتړل شول ، سپرو خپلو کارونو ته لاسونه ټينګ کړل ؛ ابرګش هم یوم په غاړه کړ ، په کښت کروندو بوخت شو . آيينه قرد سپرو په ننداره تږې لېمې نه شوې او به کوڅې او خپلو لږونيو اند ېښنو ته يې د ديدن توښه نه شوې رسولې ، له سهار تر ماښامه به يې سل ځلې تر رنګ د بوالۀ سر ورپورته کړ خو د زړه ورکه يې په لاس نه ورتلله . نور عالم د پسرلي مستې هوا ، شنو وښو او راز راز ګلونو ته خوښيدل ، نور د مېوو او غلو دانو په تمه وو ، نور له غارونو راوتلي د ژوند په چارو مصروف وو ؛ دابرعکس له تماشو محرومه او له ديداره جلا شوې وه ، سرو ګلونو يې په زړه سره داغونه ايښي وو او شنو وښو يې شين زړه نور هم شين کړې وُ . چې په آيينه کښې به يې کتل خپل ساده حسن ته ، خپل طبيعي او بې پيرايه حسن ته ، خپل کچه او معصوم ښايست ته چې خپل نازک او له مينې ډک زړه ته به يې سر ورټيټ کړ او بيا به يې په هغه حال کښې د خزانو ښامار او د ښاپېريو واکدار ستور د بو (زوې موچې) سترګو ته ودريد بې اختياره به يې په پستو انګو د اوښکو روڼه څاڅکي راورغښتل . لکه څرنګه چې د کال ځواني ورپورې بده شوه د غه شان د خپلې ځوانۍ

پخلتن په زړه پخوله ، چې ورځ به وتله دا به خپلې بدمرغۍ ته نوره هم متوجه کېده ، پخوا وړه وه په ښه بده نه پوهېده ، اوس پېغله شوې وه ، عمر يې پښه په پنځلسم کال اېښې وه ، د خوارۍ غريبۍ درد ، د بېکسۍ او بېوسۍ احساس او د بدبختۍ تريخوالی يې په کامله توګه درک کولی شو . غمونه ورځ په ورځ وربانديې غمېدل او ناميندۍ شبېه په شبېه وربانديې خورېدله څوچې يې د مور او پلار په زخمونو څه نور مالګه مرچ هم ورودورول، په درد دردمنه پېغله له خوارۍ په شليدلې تلتك پرېوتله .

نرۍ ابۍ به کله ورته سپېلنۍ لوګول ، کله به يې د کوم ايشان صاحب يا داملاصاحب په پاکو ګوتو ليکلي څابستونه تاوېزونه راوړل ، کله به يې په نژدې زيارتونو ګرځوله خو د دې په رنځ کښې څه کمی نه راتلو . اخر چا ورته وويل : د وړې په څبله کښې چې د "بازقم" شګې سرې شي ، نجلۍ تر غاړې پورې په تودو شګو کښې پټه کړه او ښه د ډېره هندوانه په هغه حال وربانديې وخوره چې خوله وکړي ، درست رنځ به يې له خولو سره له جنده ووځي ، د ګل غوندې به درته وغوړېږي . مور يې دا خبره ومنله ؛ دا يو کليوالی علاج و چې د قولنجو په خوږو اخته يې ډېر ليدلې وو چې شګو ته به يې بېول او په دې توګه به يې علاج کېده ؛ تياری يې ونيوله ، د وه درې تنه د خيرسرې يې تر ډېرې ترلمنې ونيول چې يوه ورځ د دوی لپاره کوډه کړي .

بله ورځ د سهار په خړه وړه کښې یوه وړه غوټه له ګلی وتله چې په هغوی کښې آئینه ټوټې په خړهٔ سپړه ، مور او درې تنه نور چې کوې یې په غاړه وې پلی ورسره روان وو، چې لمر یوه نیږه راپورته کیدو دوی په شګه کښې ځای خوښ کړے وُ ، نجلۍ ته یې کنده وکښنسته ؛ که دې هرڅو خاورې باد کړې چانه ورته کتل ، په زوره یې په کډی کښې کیښوله او ترغاړې پورې یې په درنو او تاوجنو شګو کښې پټه کړه . د نجلۍ چیغې سورې په سلګیو او څګیروی بدلیدې ، لمر هم تابه ویل چې دې منظرې ته حیرت وړے دے او په ډیر دقت سره یې څارې سیخ ورته متوجه وُ . برسېره په دې چې ژړ ژړیې هندوانه ورکوله خوچې د غرمې مخه شوه د نجلۍ خوله هم په ړنو او لوندو لېمو پسې پټه شوه ، مور یې وارخطا شوه، ژړ ژړیې د ملګرو د ممانعت باوجود په لاسونو شګې وتوښیلې چې لور راوباسی خو آئینه ټوټې د خاورو لوړے خوښ کړے وُ د تل د پاره یې د ژوند له ستونزو سترګې پټې کړې وې !

# دخدای دلاره سپږي

سترګي يې په ګډو کښې غړيدلې او بڼرو يې په ميږو پسې سپينه شوې وه ، درب دوه ، تکې برګې يې نه وې زده ، سپين مامدين بنيادم ؤ ؛ ډېر به خوشاله کيدو چې بل ته به يې خير ورسيدلې ؤ ؛ نه يې خپله تجربه له چا سپموله نه يې خپله ډوډۍ .

حاجی عمر اکا به اوس ؤ د ځلورو ځلورنيمو شلو کلونو د عمر سړی ، برسيره په دې چې په سترګو زهير ، په غوږو نو درونډ او په صورت کمزوری ؤ خو همت يې لاځوان او فکر يې په ځای ؤ ؛ د خلکو له خدمته يې لاس نه ؤ اخيستی . له لرې لرې کليو به خلک ورته راتلل چې حاجی به لاس لری او چې د چا مات شوی لاس يا ماته شوې پښه ورو تړې تک پټړی شی ، کله هم ترې د چا مات هډوونه کاره نه دی کوشېږ شوی ، چې ده ته راغلی دی خدای يې داسې ښه کړې ده چې ته به وايې هډو يې هډو مات شوی نه ؤ .

حاجی اکا اوس بوډا شوی ؤ ، په کور به ناست ؤ

دنیایي چارو ته یې شا وراړولې وه ، په مېږو په وریو یې کار نهٔ درلود ، زامن او وریرونه خدای ډېر ورکړي وو دهٔ ته یې په کراره ورسوله .

حاجي په وروستیو کلونو کښې څهٔ زمکه واخیستله، کور مېلمستون (حجره) او جومات یې پکښې جوړ کړل چې د عمر وروستنۍ شپې ورځې پکښې ارامې د خدای په ذکر تېرې کړي.

چې کله به د وورې مخه وه او مېږې به یې سیابندونو ته ختلې مالدارو به ولېښل ، دوی به هم نیم کوره شول ، څهٔ به په مېږو پسې ایلاغ ته وختل ، څهٔ به لهٔ حاجي سره د حاجي او ملک پښتنې خدمت ته پاته شوی وو .

د "چاردرې" د وورې گرمي کله په نورو ښه نهٔ لگیده او د سیابند شمالونه به یې یادېدل په بوډا شوی حاجي ډېره بده نهٔ لگیده ، بوډاگانو ته هرڅهٔ چې وی نرمه اوگرمه هوا ښه وی . د ستړیو مزلونو خوند هم په ځوانۍ کښې اخیستل کېږي ، د کډو د لېښلو اړولو حوصله هم ځوان زړونه او پیاوړې مټې غواړي ؛ حاجي اوس د دې خبرو نهٔ وُ دهٔ ته نو هرڅهٔ د ارام او استراحت ضرورت وُ .

څرنگه چې حاجي لهٔ اوله مالدار (رمه وال) سړی وُ داسې میاشت یا اوونۍ به نهٔ وه چې د دهٔ به کومه مېږه یا وریه د ایلاغ په غرونو ورشو کښې نر کمرگي نهٔ وه رالویدلې یا به لېوانو نهٔ وه داړلې ؛ چاره څهٔ وه ؟ په رېنو ستړگو خو

یې نهٔ شو ورته کتلے ، د ماتې ګوډې چاره به یې کوله او ټپونه به یې ورګنډل چې د عمر په تېرېدو سره یې تجربه زیاتېدله ورو ورو یې شکسته بندی زده کړه چې د بنهٔ سرېتوب لهٔ امله به یې د نورو د مېږو علاج هم کاوهٔ . پهٔ ځوانۍ کښې د مېږو پهٔ علاج پهٔ تېره پهٔ شکسته بندۍ کښې مشهور شو نورو پوونده وُ به هم دهٔ ته مراجعه کوله ، پهٔ دهٔ کښې چوسه نهٔ وه کهٔ به نیمه شپه هم چا خبر ورکړ دے به ور سره روان وُ او دا یې یوه اخلاقي فریضه ګڼله پرته لهٔ دې چې څهٔ مادی ګټه یې پهٔ نظر کښې وی یا چا ته د کومې اجورې تمه توقع ولری، ځان به یې ورساوهٔ ، خپل وس او اخلاص یې لهٔ هیچا هم نهٔ سپماوهٔ .

دهٔ به ویل :

— پهٔ لکونو پوونده دی ، ګرده مېږې لری ، ګرد و ته دغه شان پېښې ورپېښېږی ، دا چې یوا ځې یې ماته د ترلو چل راځی دا به خدای ته منظوره وه چې د خدای د مخلوق خدمت وکړم او خپله وسه لهٔ هیچا ونهٔ سپموم ، خدای پاک چې بې تعلیمه ماته دا فن راښوولے دے او پهٔ لاس کښې مې خدای برکت ایښے دے د دې لپاره نهٔ دے چې زهٔ پهٔ چا سرپېښې وکړم او د خلکو لهٔ مجبوریته بده استفاده وکړم .

ورو ورو د هډونو پهٔ ترلو او ځای پهٔ ځای کولو کښې داسې وارد شو چې د بنیادم ختلی هډونه او مات شوی

هډوکي به یې هم ځای پر ځای کول او تړل . په لنډ وخت کښې یې د شکسته بندۍ شهرت تر لرې لرې خپور شو.

حاجي تر دې وخته د زړګونو ماتو شوو پښو لاسونو علاج کړے و او د ځینو علاج ته تر لرې لرې ځایونو پورې هم تللے وو خوله دې لارې یې یوه پیسه هم نه وه ترلاسه کړې دهٔ ته دا ګټه ښه نهٔ ښکارېدله ، ویل به یې چې خدای سوره هستي راکړې ده زوال دې نهٔ شي تر خوله مې تېره ده، په شکسته بندۍ به لاځهٔ د چا جېب ته ګورم ،کهٔ وګورم د کار برکت مې ځي او ممکن بیا مې له لاسه څوك روغ نهٔ شي.

حاجي پهٔ تمامه معنی یو د خیر سړے و ، د خدای مخلوق ته به یې پهٔ ښه سترګه کتل او د هر بنیادم خدمت یې پهٔ ځان لازم بالهٔ . دېر ځله به چې لرې د چا لاس یا پښه ماته شوې وه او حاجي ته به یې مراجعه وکړه ، حاجي به ویل : "ناروغ مهٔ راوړئ چې پهٔ لاره کښې پهٔ تکلیف نهٔ شي ، زهٔ روغ یم زهٔ به درسره لاړ شم ." خر به یې پهٔ کته کړ او لهٔ هغو سره به لاړ . کله به داسې هم پېښېدله چې پهٔ شپو شپو به یو دوو تنه مات ګوډ د دهٔ پهٔ کالهٔ کښې پراتهٔ وو چې به یې هم علاج کاوهٔ هم به یې نور مصرف او خدمت د دوی پهٔ غاړه و ؛ هغه هم بې مزده بې منته .

حاجي عمر اکا به دېرو بدبینو او عیب پلټونکو ته هم یو زړهٔ سواندے او د خدای د لارې سړے ښکارېدو، هرچا

به یې نوم په نېکۍ اخېستت او هرچاییې په زړهٔ کښې احترام درلودهٔ.

کهٔ څهٔ هم حاجی ساده او بې علمه سړے ؤ خو ښو اخلاقو او ښې پېرزوینې یې حیثیت د درست تمام قبیلې په نزد ډېر اوچت ساتلے ؤ ، حتیٰ ډېرو به ورته د ومره اخلاص درلوٌ چې نورو مرضونو ته یې هم لهٔ دهٔ څخه دم او دوعا غوښتل .

چې کله دولت د کمونستانو لاس ته ورغے او ورپسې ځای ځای د دوی پر ضد پاڅونونه پیل شول د نورو مشهورو مشرانو په لړکښې حاجی عمرخوار هم په تېر عمر ونیول شو ، د نیونې لپاره هسې هم کمونستان تر ضد انقلاب پوخ سند او مدرك نهٔ پېژنې ، دا کافی ده چې ووایې ضد انقلابی روحیه لري . خو په دهٔ برسېره په دې دا الزام هم لګېدلے ؤ چې د تېرې شویو اشرارو (۱) معالجه یې کړې ده .

چې کله د تحقیق مېز ته ودرول شو نو د لومړنی سوال په ځواب کښې دهٔ ووېل :

ــ دا رښتیا ده چې په تېرو ورځو کښې ما د دوو درېوتنو مات شوی پښې لاسونه ورتړلې دی او د یو دوو تنو پرهارونه مې هم ورکنډلی دی .

پوښتونکی ورته ووېل :

ــ تا څهٔ مجبوریت درلود چې د اشرارو (۱) معالجه دې کوله ؟!

دهٔ په ډاډه زړهٔ ورته ووېل :

ــ ما درست عمر د مېړو وزو خدمت کړے دے ، چې په

حیوان به مې خوا بدېده خپل کار کسب به مې پرېښود او یو مزل لاره به د یوه حیوان د علاج لپاره تللم، اوس مې په تېر عمر او سپینه بیره څرنګه د انسان هغه هم د مسلمان ورور او خپل هېڅ وزر خدمت نه وي کړی؟! زه د خدای لپاره د خدای د مخلوق خدمت په ځان فرض ګڼم، غابښ یې نه ګورم چې څومره دی؟ د کوم ځای دی؟ د څه خیال او عقیدې خاوند دی؟ او په څه ژوبل شوی دی؟ هیسته دی پوه شه نیت او عمل یې . . . .

د حاجي عمر اکا محاکمه ډېره لنډه او مختصره پای ته ورسیده خو فیصله یې اوږده شوه، دا ځکه چې ډېر تحقیق ته ضرورت نه و؟ ده پخپله په خپلو کړو اعتراف کړی و خو حکم ورباندې صادرول ځکه ګران شوي وو چې یو خو ډېر خلقیان په دې پوهیدل چې حاجي د سیاست له کوڅې هم نه دی تېر شوی څه چې یې کړي دي د ښه زړه او انساني خواخوږۍ په لمسه یې کړي دي. بله دا چې د ډېر عمر سړی دی هسې هم سږ یا کال ته پسې غزوي نو موږ ورباندې ولې ځانونه نام بدي کړو؟ برسېره په دې دلایلو حاجي له ډېرو خلقیانو سره هم ښه کړي وو، ممکن لږ ډېر به یې د ده ښېګڼې هم سترګو ته دریدلې وې. ځینې خلقیان بیا په دې نظر وو چې تر درستو د مخه باید دا په ښو مشهور سپین بیری له منځه لاړ شي، چې نور خلک بې جرمه یې علته د پېش بینۍ لپاره وژنو چا پوښتنې راپرې کړې

چې د دهٔ پهٔ مرګ به یې راپرېږ کړي؛ حال دا چې ده ته خو لا پوخ مدرک او سند هم لرو چې پخپله یې پخپلو جرمونو اعتراف دے .

حاجي ځو میاشتې یې سرنوشته پهٔ جېل کښې وساتل شو ، پهٔ دومره وخت کښې نهٔ د دهٔ پهٔ هکله قاطع فیصله وشوه نهٔ دے پهٔ دې پوه شو چې څهٔ به ورسره کېږي ؟ څو چې یوه شپه د کندز محبس د لومړنی ځل دپاره د مجاهدینو پهٔ مټ خلاص شو او پهٔ سلګونو چانوارېه ته تیار بندیان د تیارې تر پلو لاندې ووتل ، حاجي عمراکا یې هم لهٔ جېله راوېویست ، بندیانو هر یوهٔ پهٔ یوه خوا پښې وایستې خو حاجي خواب پهٔ توره شپه کښې د زړبودي لهٔ امله درسته شپه د محبس پهٔ خوا کښې تېره کړه ، چې سحر بیا د دولتی مامورین پهٔ لوګ شوي محبس مسلط شول حاجي یې د جېل لویې دروازې ته ناست ولید خوا وې پوښت : څوک یې او دلته څهٔ کوې ؟؟ دهٔ پهٔ ساده ژبه ورته وویل :

— زهٔ څو میاشتې کېږي چې د مجاهدینو د علاج پهٔ تور نیول شوے یم ، بېګاه چې بندیخانه خلاصه شوه زهٔ یې هم وایستم شپه مې دلته بهر تېره کړه ، پهٔ هغه توره شپه کښې به پهٔ دې زهیر صورت چېرته تلم ؟ کهٔ ګنهګار وم نو حکومت بیا هم راوستلے شوے کهٔ نهٔ وم د ورځې مې هم پرېښودلے شی .

حاجي د ولایت پهٔ امر ازاد شو خو بېګنې یخنۍ یې سرې لهٔ کاره ایستلې وو ، د کور شپه یې پهٔ ګور شوه .

# تناکې

ملا یې د شا پېټی ورسولولې وه ، د پښويې څه تناکې چاودلې او څه په راختو وې ، دېر په تکليف د لارې له ملګريو سره روان و، ځو دالځه یې ورته ويل غابښونه وچيچه ، په ځوانانو هرڅه راځی، پام کوه چې ځان د همځوليو مسخره نه کړې ؛ خو پخو تناکو په قدم قدم کښې ورته پېچومی د رول چې ترې اوښتل څه توکه نه وه .

شاولې په نسبتاً شتمن کور کښې لوی شوی د مور پلار ځینې زوی و ، نه یې مزلونه ليدلي وو ، نه یې پنډې کرځولې وې؛ پښې یې پستې او د ملا پوست یې نازك و ؛ اوس که به یې سوليدلې ملا سوی کاوه که چاودليو تناکو؛ ده تر وسه وسه په ځان نه راوړه چې هسې نه ملګری ورپورې وخاندی او خپلې ځوالځه ته یې سر ټيټ شی. خدای خدای یې ويل چې د یارانو یې هم دمې ته زړه وشی، څو دمه فرصت ومومی چې اقلاً د پښو په تناکو پټ کوم د سمال وپېچلی شی خو یاران یې داسې روان وو چې تا به ويل د فټبال مسابقې ته ځی.

دا د دوی څلورم پنځم مزل و او ډېرې اوږدې لارې یې لا په مخ

کښې وې ؛ د شاولې سترګو ته به چې د پاته مزلونو ستونزې ودرېدې وارخطا غوندې به شو، نو ځر به یې زړه ته په دې تسلی ورکړه چې لومړنی مزلونه سخت وي، ورو ورو سړی پوست او غوښه پخېږي، کله نه دا نور هم زما غوندې له پستو غوښو جوړ شوی ینیادمان دی،دوی ولې ستړیا او تکلیفونه نه حس کوي ؟

لمرد غرۀ له سره د ښوېدو په حال کښې ؤ،چې مخې ته یې وکتل د کوم کلي یا ابادۍ څه پته نه لګیده ؛ داسې ښکارېده چې اقلاً دوه درې ساعته نور هم باید لاره ووهی، څو کومې ابادۍ ته ورسېږي. د تنباکو سوي یې دم په دم ډېرېدو او د پاتېدو وېره یې لحظه په لحظه ډېره حس کوله. چې کله د ماښام لمانځه ته ټتم شول، له لمانځه او دوعا وروسته یې هڅه وکړه چې څه شیبه ملګري په خبرو ونیسي او تال یې کړي خو نتیجه یې ورنه کړه ، ځکه چې هغوی پنلړې غاړو ته اچولې او سفر ته تیار وو ، ځواب یې په ولاړه ورکړ ؛ دے هم مجبور شو،که څه کور ګران وو د مړۀ ورنه ناکام ؤ ، ورپسې پاڅېده چې پل یې واخېست تر پخوا یې هم د تنباکو سوي ډېر شوے و له بلې خوا یې کتل چې د ملګریو کامونه یې د ماښام په تیارۀ کښې نور هم ګړندی کیدل ؛ د هغوی هڅه وه چې یو آن د مخه د خطرونو له حوزې ووځي او یوه لحظه د مخه ځانونه کوم بسیا کلي ته ورسوي د دهٔ په حال نه وو خبر چې دے که له سیالانو شرم نه وے هم له مزله تېر وهٔ هم یې خطرونه منل . د تنباکو ډېر سوی دې ته نژدې کړے ؤ چې د یارانو ریشخند هم ومنی او له تللو معافی

وغواړي ؛ د دهٔ پهٔ زړهٔ او ذهن کښې لا دا کشمکش نتیجې ته نهٔ وُ رسیدلے چې حال ووایي کهٔ نه ؟ . . . چې ناڅاپه ډزې شوې ، ملګري درست پوه شول چې روسانو کمین ورته نیولے دے . څرنګه چې د شپې پهٔ تیارهٔ کښې د دښمن د قواو اندازه کول ناممکن کار وُ ، هر یوهٔ یوې خنډې ته ځان ویوست ، یواځې شاولی د ډزو پهٔ مخ کښې ایسار پاته شو ؛ دا ځکه چې هم نابلده وُ ، هم یې د پښو تناکې د پښو زولنې وې چې دهٔ ته یې د عادی سفر اجازه نهٔ ورکوله ؛ منډه به یې څنګه وهله ؟ . . . شاولی لهٔ مجبوریته ګونډه ورته ماته کړه او پهٔ جوابی ډزو یې لاس پورې کړ ؛ دهٔ هسې هم ځان پهٔ مړو کښې شمېرلے وُ ، دا ئمه یې شکېدلې وه چې پهٔ روغ صورت به دا اوږدهٔ مزلونه وهی ، د کښېوتی ډار نهٔ وُ ؛ دا یې هم پهٔ زړهٔ نهٔ هموارېدله چې ژوندے تسلیم شی ، چې هر ډز به یې د ټوپك لهٔ خولې ووت د دهٔ همت او استقامت ته به یې تکیه ورکوله ، لمحه پهٔ لمحه یې واهمې لهٔ ذهن او زړهٔ څخه پیڅې ورټولولې . څهٔ شیبه وروسته پهٔ داسې حال کښې چې شاولی پهٔ یوهٔ ورانهٔ لګیدلے وُ ډزې کرارې شوې ، دے نور هم ټك شو او پهٔ ځیرهٔ ځیره یې شاوخوا څارله چې هسې نه روسان پهٔ پټه خوله ورته رانژدې شی ، خو ژر لهٔ دې ارخه هم ډاډه شو دیوې څرخی الوتکې د الوتنې ژغ یې پهٔ څلور پنځه سوه قدمه فاصله کښې واورېدهٔ چې الوتکه لهٔ ځمکې هسکه شوه ، د څراغونو له رڼایې پوه شو چې غلیمانو بې نتیجې میدان پرېښے دے . البته د روسانو پهٔ بېرته تګ خوشال شو خو دې خوشالۍ هم ژر لمن ورونغښتله

ځان ته یې پام شو چې په لویه بې سر او پایه دښته کښې له خپلو ملګریو جلا پاته شوی دی؛ هغه هم ویښتلی او زخمي. چې کله یې پخپل ورانه لاس وواهه، دومره قدر تسلي یې وشوه چې مرمۍ په پسته کښې لګېدلې ده، هډوکي ته یې خیر دی. د پګړۍ څه برخه یې پرې کړه او پرهار یې ورباندې وتاړه چې ګوندې د وینې د ضایع کېدلو مخه ورباندې ونیولی شي. بیا یې پنډ له ملا ښکته کړ سر یې ورباندې ولګاوه. ستوني ستغ پرېوت، ستوریو ته یې کتل چې د دوی غونډې په بېکرانه فضا کښې د ورک منزل په لور روان دي؛ له ځانه سره یې وویل:

ــ څومره بختور دي!! نه یې پنډې په شا دي، نه یې ورته ضرورت شته، نه یې ملاوې لګېږي، نه یې تر تلو تنګې راخېژي او تر ټولو یې لا دا ښه چې هیڅوک ورته په لاره کښې جازونه نه کښېنوي....

بیا یې هغه لحظې ورپه زړه شوې چې په داسې شپه یې له مور سره ورو ورستی خدای پاماني کوله. مور یې په خوله تسلي ورکوله خو د کې سترګې یې د ډېرو پرېشانیو رازداري وې. ده لېدې چې مور به یې هغه کوله چې له ده یې پټې تشې کړې. ممکن دې ته به د لارو مشکلات، د سفر ستونځې او د جنګ سختۍ نه وې معلومې، صرف په دې به یې په لمبو کښې اوښکې ډنډ ولاړې وې چې ډېر وخت به له خپل نازولي زوی څخه لرې پاتې شي، نو که یې دا صحنه لېدلې وې څه به یې کول؟ یا که چا کوم وخت خبر ورکړ چې شاولي د دښمنانو له لاسه په لویه

بېديا کښې له لوړې تندې يواځې ساه ورکړه ، غوښې يې دلېوانو تېپوسانو په برخه شوې، څه به کوي ؟ . . . دې تصور به اوچت راکښېناوه ؛ هڅه به يې کوله چې ځان ته د تسلي يو پلمې پيدا کړي خو په دې توره دريله ، دې نابلده لار او لګېدلي پښه به يې څه تمه پيدا کېدله ؟

شاولي شپه په ډېرو تشويشونو سبا کړه ، موريې دومره ډېره ډېره تر ستړکو ستړکو کېده چې خپل مرګ او ژوند يې ورپورې هېر ؤ ، د دې په ارزومند زړه به يې ډېره خوا شنه کېده يقين يې وه چې په دې متروکې لارې په هفتو هفتو هم څوک نه راېدښېږي او ملګريو به هم دے په مړو کښې شمېرلے وي ؛ په يوه مړي پورې به شل دېرش تنه ځوانان ولې ځانونه د مرګ کومي ته غورځوي ؟ که اوس بيا په رښا کښې د د ښمن الونکه ورته کښېني له يوه لښکر غليانو سره په روښه ډګر څه کېدے شي ؟ او که نه کښېني له تندې يې هم مرګ حتمي دے . . . .

سحر د لمر له راختو سره په وهلي لاره څه سياهي ښکاره شوه چې ښه ورته ځير شو يوه ډله سړي يې وليدل چې د دوه په لوري راروان دي ، فکر يې وکړ چې بيا به چېرته روسانو الونکه کښېښولي وي ، تويك ته يې کارتوس ورتېر کړ ،کوته په ماشه ورته کښېناست چې اقلاً يو دوه خو ترځانه د مخه کړي، خو چې سړي رانژدې شول تګ يې غيرمنظم ؤ داسې ښکارېده چې پوځيان نه دي ، لږ نور هم ورته دقيق شو، يقين يې حاصل شو چې روسان نه دي ؛ د تګ انداز يې د اولسي خلکو وه.

چې څه نور هم رانژدې شول، وې پېژندل، خپل ملګرې یې وو چې ښکاره زو بېرته تمبولي وو؛ په زړه یې د امید رڼا خوره شوه، بیا یې مور ستړګو ته ودرېدله چې له چا څخه د خپل مسافر زوی پوښتنه کوي؛ هغه ورته وایي:

ـ له شاولي بې غمه اوسه، هغه په خیر سنګر ته رسېدلی دی.

ملګري یې چې رالنډ شول شاولي یې ولیده چې ژوندی دی، په منډه ترې راوګرځېدل، هر یوه په غېږه کښې ونیوه، بیا یې وپوښت شاولي ورته وویل:

ـ نور خیر دی صرف په یوه ورانه لګېدلی یم، هغه هم د خدای فضل دی په پسته کښې لګېدلې ده.

کله چې سرګروپ په عاجله توګه زخم ورپانسمان کړ او پښه یې وروتړله، ملګریو ته یې وویل:

ـ اوس نو ځنډ نه دی پکار، شاولي به په یوه څادر کښې پرېباسو او په وار سره به یې دوه دوه تنه وړو چې په خیر نژدې کلي ته ورسېږو.

د شاولي له ذهنه چې د بیابان مرګه وېره د یارانو مرستې لرې کړې وه بیا یې مور تر سترګو شوه، چې پوړنې یې په دواړو لاسونو په غاړې پورې ټینګ نیولې، په ډکو سترګو اسمان ته ګوري خدای ته په پټه خوله زارۍ کوي او په ورکو لارو تللي زوی ورته غواړي.

تصوراتو په مخه کړې ؤ ، کله به یې د بیابان مرګی په اندېښنو کښې بېکښې روښه تېره کړې شپه ورپه زړۀ شوه کله به یې د مجهول سرنوشت په لوری وسوسو په لار و کښې اغزي شندل . چې کله کلي ته ورنژدې شول ، سرګروپ وویل :

–شاولي ! پام کوه چې چورت خراب نۀ کړې ، دا دے کلي ته راورسیدو ؛ دلته به څو ورځې ارام وکړې ، کۀ څوك لۀ جراحۍ سره اشنا پۀ کوتو راغے مرمۍ به دې هم لۀ پښې وباسی ، چې کله بیا د تللو شوې ځو به .

شاولي پۀ ځادر کښې سر را اوچت کړ او ویې ویل :

–زۀ جوړ یم ، زما تشویش مۀ کوئ او زما لپاره تاسو خپل مزل مۀ ځنډوئ .

سرګروپ ورته وویل :

–چې موږ د رسره نۀ یو ، څوك به دې د مرمۍ چاره کوی ؟

شاولي بې اختیاره ورته وویل :

–نۀ غواړم چې دا مرمۍ مې لۀ پښې وباسئ .

هغۀ وپوښت :

–ولې ؟!

دۀ وویل :

–دا مرمۍ ډېره بختوره مرمۍ ده ، دې مرمۍ زۀ لۀ بیابان مرګي او عمري خجالت څخه ایستلے یم ؛ دا مرمۍ وه چې زما د پښو پۀ تناکو یې پرده وغوړوله . . . .

# وړه بنا پیری

"پټي خان" هم یوه ورځ د یوې ډلې مجاهدینو سره د "میرانشاه" له لارې راورسېدو؛ کور یې د "کچه کړهۍ" په کمپ کښې وو. مور، خور او کشرے ورور یې یو کال پخوا تر دغه ځایه رسولي او دے بېرته له مجاهدینو سره تللے وو. دا یو کال یې پته نه لګېده چې مړ دے، ژوندے دے، چېرته دے او څه کوی؟...

د ده په راتګ سره واړه ځاله ته د خوشالۍ یوه لنډه څپه راورسیده؛ لنډه ځکه چې پټي خان نور هغه پټي خان نه و چې کور او ورسنیال کړے شی او د خور او مور زړونه وساتی.

پټي خان نه ګوډ وو، نه ړوند وو، نه یې کوم ښکاره پرهر په وجود باندې لیدل کیده؛ اما هوش او فکر یې په بله وو. نه یې خورته پام وو نه مور ته، نه یې پخپل کشري ورور مینه کوله نه یې د سبا غم درلود؛ په پټه خوله به وت ننوت او چې ناست به وو هم فکر به یې په بل عالم کښې پېنګې خوړې.

یوه د څلورو پنځو میاشتو ماشومه یې له ځانه سره راوړې

وه چې دی به "ښاپېرۍ" بلله ؛ ډېر وخت به يې له ښاپېرۍ سره اړاوۀ چې ښاپېرۍ به ويده وه دے به ورته ناست وۀ ، چې ويښه به وه دۀ به په خوا پورې نيولې بهر ته به يې وايستله ؛ د هغې معصومانه خندا ته به يې ورو ورو ژړل . هېڅوک نۀ پوهېدل چې ښاپېرۍ څوک ده ، له کومه يې راوړې ده او د دۀ ورسره څۀ خاصه علاقه ده ؟ . . .

د پېتې خان په ښکلې ځوانۍ او ښۀ کړۀ وړۀ ځېولې سر او خېږنو جامو خاورې دوړولې ، چې هرچا به وليدۀ خوا به يې ورته شنه کېده . دے پخوا داسې نۀ وُ ، نۀ ښکارېدۀ چې څۀ کوډې ورباندې شوې دی ؛ نۀ دۀ خبرې کولې نۀ يې ملګرې په راز خبر وو .

ښاپېرۍ ښه روزل کېده ، هوا هم بده نۀ وه پرې لګېدلې د خور او مور يې هم ورو ورو مينه ورسره زياتېده ؛ مور ته به يې کله کله دا انديښنه پيدا شوه چې ممکن پېتې خان پټ په پټه وادۀ کړے وی او له ليونۍ مينې د غه ښاپېرۍ ورپاتې شوې وی .

اېځ په هغې نېستۍ او پرد پسې کښې خپل ځوان زوی ته ډېر د مونه ، تاوېږونه له يوۀ ځايه بله ځايه راوړل خو د پېتې خان وضعه نۀ بدلېده .

هفتې په مياشتو بدلې شوې ، ژمی پسرلی ته او پسرلي اوړي ته ځای پرېښود ، ښاپېرۍ د خاپوړيو شوه ؛ ترپېتې خان

به د ابۍ او د پېتې خان د خور او کشرۍ وررور په غېږ کښې خوشاله وه، ځکه چې هغوی به ورسره لوبې کولې او پېتې خان به پټه خوله ورته ژړل .

په ماشومې ښاپېرۍ دا ووړ کوړکې روڼ شوې وه کله کله به د دې په معصومانه حرکاتو د دوی د خندا ژغ د دوی تر تامبو بهر هم ووت ؛ د ګاونډيانو يقين ؤ چې ماشومه د پېتې خان لور ده خو چې مور به يې خفه شوې وی ...؟

د ښاپېرۍ کړه وړه هم تر ډېره حده د پېتې خان غوندې وو ؛ خصوصاً سترګې يې کټ مټ د پېتې خان سترګې وې، منتها په دې تفاوت چې د پېتې خان په سترګو د حسرت دورې غوړېدې او نااميدۍ ورځخه طبيعي شوخي او ښکلا اخېستې وه او د ښاپېرۍ لېمو لا ژوند ته په سادګۍ خندل .

• • •

مازيګر چې لمر د "شمشاد" څوکې ته سر ټيټاوه د پېتې خان د دوی د تامبو سره جوخت تامبو ته د کور خاوند يو مېلمه راوست ؛ مېلمه ځوان او د وطن سړی ؤ ، د داسې ښکارېده چې نوی راغلی وی . په دې وخت کښې پېتې خان د خپلې خېمې سيوری ته بهر له ښاپېرۍ سره مشغول وه ؛ مېلمه له سلامه وروسته يو دوه ځلې ښاپېرۍ ته وکتل بيا يې لبوفی پېتې خان ته چې بيا يې ښاپېرۍ ته وکتل، ويې ويل : ځوانه دا دې لور ده !؟

ــ پېتې خان وويل : لور... ؟ زما... ؟ هو ... !

لکه لور چې مې وي .

ــ هغهٔ وویل : څهٔ نومېږي ؟

ــ ده وویل : نهٔ پوهېږم ، ما ته خو ښاپېره ښکاري .

مېلمه ته شك ورپیدا شو ، بیا یې وپوښت : ولې نهٔ پوهېږې په لاره کښې خو به دې نهٔ وي موندلې ؟

ــ پېتې خان وویل : په لاره کښې ؟ هو ! . . . په لاره کښې نه نه ، په کور کښې وه ؛ په ځنګ او لوګ کور کښې .

د مېلمه اشتباه نوره هم زیاته شوه ، بیا یې وپوښتل : نور اولاد هم لرې ، که دې د غه یوه لور ده ؟

ــ دهٔ وویل : زهٔ اولاد نهٔ لرم ، وادهٔ مې لا نهٔ دے کړے .

ــ هغهٔ وویل : چې تا وادهٔ نهٔ دے کړے ، دا د چا لور ده ؟

ــ دهٔ وویل : دا ښاپېره ده ، د ارم ښاپېره ؛ د ښاپېریو لور ، د واورینو غرونو د سرو او رڼو چینو د غارو ښاپېره....

پهٔ دې وخت کښې کوربه مېلمه ته وویل : رحیم خانه راځه!! ځای درته جوړ شو .

"رحیم خان" زړهٔ یې زړهٔ رواں شله ، پهٔ تګ تګ کښې یې ښا ښا ته کتل ، پام یې د ښاپېره پهٔ لوری وهٔ ، پښه یې د خېمې پهٔ مراندو کښې بنده شوه او پرمخ وپرېوت ؛ کوربه تر متو ونیوهٔ ، چې راپورته یې کړ او جامې یې لهٔ خاورو وروڅنډلې ، ورته یې وویل : ژوبل خو نهٔ شوې ؟

ــ رحیم خان پهٔ نیولې ژغ ورته وویل : نه ! خیریت دے ، تشکر .

چې د خپې خواته په غوړيدلې توشك كښېناستل ، كوربه ورو غونډې ورته وويل : له لېوني سره دې څه خواله وو ؟

— رحيم خان ورته وويل : رښتيا دې لېوني وادهٔ كړې دے ؟

— هغهٔ وويل : موږ خو يې د وادهٔ څـــه نه دی اوريدلی .

— رحيم خان بيا وپوښتل : نو دا لوړ يې ؟

— هغهٔ وويل : يو كال جهاد ته تللی و ، كور يې زموږ په خوا كښې و ، نه يې د وادهٔ خبره وه نه د كوژدې ، خو چې كال پس راغے دالنجلې يې په غاړه راهولې وه .

— رحيم خان وويل : تاسو ته څه وايي چې دا مې له كومه راوړه ؟

— هغهٔ وويل : موږ ته هېڅ هم نه وايي ، مجذوب غونډې سړے دے ، اكثر نجلۍ ته گوري او ورته ژاړي ؛ نه پوهېږو چې كيسه څهٔ ده ؟ . . .

— رحيم خان وويل : له ما سره خو يې څهٔ څه خبرې وكړې كهٔ ورو ورو وږغول شي ښايي په كيسه يې پوه شو .

— كوربه ورته وويل : د لېونيو په هغه كيسه څهٔ وی ؟ پيځې ترې ټولول پكار دی ، كهٔ څهٔ هم دے يو يې ازاره لېونے دے .

د رحيم خان سترگې ته غرې ودريدهٔ ، په ډېر تكليف يې په نيولې ژغ وويل : زما ماشومه "حليمه" كټ مټ لكه د غه د لېوني "ښاپېرۍ" د غسې وه او دهٔ هم وادهٔ نهٔ دے كړے ، څهٔ ووايم ؟ . . .

كوربه ته هم سودا ورولويده ، پاڅېده ، لېونے يې راوست

ښاپېرۍ په ګېلم يوه خوا بله خوا خاپوړې کولې ، کله به يوه ته ورغله کله بل ته . حليم خان ورته په حسرت کتل او د خپلې حليمې مينه يې پرې ماتوله . لېونۍ پخپلو اندېښنو کښې ډوب تللی وه ؛ څه شيبه وروسته رحيم خان وپوښتل : ځوانه! چېرې دې جهاد کاوه ؟

ــ پېتي خان وويل : په کندز ، چارده او قلعه زال کښې .

ــ هغه وويل : ښاپېرۍ هم هلته درسره وه ؟

ــ پېتي خان وويل : ښاپېرۍ پخپل کالي کښې وه ؛ له خپلې مور ، نيا او نورو سره .

ــ هغه وويل : نو اوس يې مور ، نيا او نور سکني چېرته دي ؟

ــ پېتي خان وويل : ممکن د جنت په باغونو کښې به لکه سپين وزري پتنګان ګل په ګل ګرځي او د ښايست په سمندر کښې به لامبي ....

ــ هغه وويل : ولې ؛ مګر هغه مړه شوي دي ؟

ــ ده وويل : هو ! هغه درست وژل شوي وو .

ــ هغه وويل : په لوګر کښې نه وو وژل شوي ؟

ــ ده وويل : د لوګر د ولايت په يوه ښکلي کلي کښې د لوېې لارې خواته .

د رحيم خان نوره هم په غوږونو کښې ازانګه شوه ، د يوه ملت سکوت نه وروسته يې وويل :

ــ ستا کور په لوګر کښې وه ؟

ـ دهٔ وویل : زهٔ لهٔ کندزه راتللم ، قسمت ورپېښ کړم .

ـ رحیم خان وویل : داسې ښکاري چې زموږ پهٔ وران شوي کور راپېښ شوې یې او یقین لرم چې ستا ښاپېرۍ هغه زما یې مــوره شوې حلیمه ده .

پېتې خان لکه لهٔ خوبه چې راویښ شي ، یوه خوا بله خوا یې وکتل او بې اختیاره یې وویل :

ـ ته د هغهٔ ځلمی یې ؟

ـ رحیم خان وویل : هو ! زهٔ د هغهٔ ځلمی یم کوم چې روسانو قتل عام کړ او دا زما لور ده چې اتفاقاً ژوندۍ پاتې شوې ده . موږ چې د پېښې پهٔ سبا ورغلو او مړي مو ښخول د ماشومې حلیمې پته نهٔ وه ؛ نه پوهېدم چې روسانو به وړې وي که نهٔ لېوانو ؟ . . .

د پېتې خان لهٔ زړهٔ او ذهن نه پهٔ سترګې رپ کښې دېرې تورې پردې لرې شوې ، سترګې یې وځلیدې او پهٔ ډېرې خوشالۍ سره یې خپلې مور ته وربنارې کړې :

ـ ادې وا ادې !! راشه وګوره د ښاپېرۍ پلار راغلی دے !! اوس به مې خوبه ښاپېرۍ د بېکسۍ احساس نهٔ کوي .

ـ مور یې د زوی پهٔ اواز پهٔ منډه ورغله ، خوشاله شوه چې زوی یې لهٔ څومیاشتو وروسته روغ لیدهٔ ؛ ښاپېرۍ پهٔ منډه ورغله د ابۍ پهٔ غېږ کښې کښېناسته .

پېتې خان پهٔ خبرو راغلی و ، وویل یې :

ـ ادې ! کیسه داسې وه چې زهٔ لهٔ څو تنه مجاهدینو سره راتلم ، چې کله لوګر ته راورسیدو مازیګر مهال وهٔ ، د رې څلور الوتکې راښکاره شوې ، موږ لهٔ لارې یوې بلې ډډې ته شو څرخې الوتکو پهٔ موږ د ډزو باران راپرېښود ، زهٔ پهٔ یوه وچه ویاله کښې وغځېدم ، نور ملګرې شل پهٔ شله شول ؛ چې کله الوتکې لاړې ، موږ دوه درې تنه شهیدان شوي ، یو دوه زخمیان وو ؛ کلي لرې او وخت لنډ وُ ، شهیدانو ته مو یوه کنده پورې کړه او خاورو ته مو وسپارل ، زخمیان مو د نسبتاً نژدې کلي پهٔ لورې واخیستل ، چې څهٔ لار لاړو ماښام تیارهٔ شو ، پهٔ تیارهٔ کښې بیا راباندې ډزې وشوې ، نهٔ پوهېږم څوک به وو او څهٔ به یې غوښتل ؟؟ لهٔ مجبوریته بیا سره خوارهٔ شو ؛ چې ډزې کرارې شوې زهٔ لهٔ یارانو بېل شوی وم نهٔ پوهېدم چې دوی پهٔ کومه سم شوي وو او زهٔ پهٔ کومه روان وم ؟؟ د دښمن لهٔ ویرې د بیا ګرځېدنې او پهٔ دوی پسې د لټې امکان نهٔ وُ ، پخپله مخه لاړم ؛ یو وخت ښایې یوولس دولس بجې به د شپې وې چې زهٔ پهٔ یوهٔ کلي وربرابر شوم چې ورورسیدم څېښې کورونه سوي او څېښې وران شوي وو ، داسې ښکارېده چې ډېښنه هم بس پهٔ دغه ورځ شوې وه . یوه خونه راته روغه ښکاره شوه چې ورننوتم او د لاس بټه مې ولګوله پهٔ سترګو مې تیاره شوه ، یوه خوا بله خوا مړي پراتهٔ وو ، واهمې واخیستم چې ترې راووتم د ماشوم ژړا مې واورېده ، بېرته ورګرځېدم

چې کتل مې د شهیدې مور خواته ځغلې ژړل ، بله چاره نهٔ وه مرې مې په خدای وسپارلې ، نجلۍ مې راواخیستله او راووتم نهٔ پوهیدم چې دا نجلۍ څهٔ نومیږی ؟ د چا لور ده ؟ پلار به هم څوك لری کهٔ نه ؟ . . .

په ډیر تکلیف مې یوې بلې اباسۍ ته راورسوله ، لهٔ هغې ورځې راپه دې خوا یې ښاپیرۍ بولم ؛ ښځهٔ شوې چې تهٔ راغلې اوس به مې هډونه سپك شی او جهاد ته به خلاص یم،ترا او ښاپیرۍ یو الٰهی امانت وٌ چې پالنه یې ما په ځان فرض کړله . لهٔ بلې خوا چې دې ته به مې کتل د دې په بیکسۍ او مجهولې آینده‌ی به سوځیدم ، نهٔ پوهیدم څهٔ ووایم چې دا د چا لور ده ؟ لهٔ کومه مې راوړې ده ؟ ممکن ډیرو ته د یوې غیرمشروعې مینې نتیجه ښکاره شوې وی چې طبعاً دا نور په آینده کښې د دې په روحیاتو بده اغیزه کوی . ما به فکر کاوهٔ چې نرخپله وسه به یې کوښښ وساتو او ممکن چې وس مې بر شی څهٔ لیك لوست هم وربانده وکړم ، لیکن دا به ښه کله ثابتوم چې دا د یوې شریفې اما مظلومې کورنۍ لور ده چې مور ، نیا ، نیکهٔ او نور یې درست د خدای په لاره کښې شهیدان شوی دی ؛ زهٔ د ښاپیرۍ معصومانه نګاه او بې الایشی خندا لیونی کړی وم په ما یې هرڅهٔ هیرول . . . .

رحیم خان وزنه وویل :

ــ تاته دې خدای پاك اجرونه درکړی ، لهٔ ما سره خو

فعلاً له شکریې او دوعا پرته بله هیڅ معاوضه نشته ، کور دې په لوی خدای ودان ، اوس دې خوښه چې نجلۍ راکوې که یې ستنوې ، له تاسره هیڅ دعوه نه لرم .

پښتې خان وویل :

ــ په هر حال چې ته خوښ یې زموږ درسره سلا ده ، که دې لور درسره بوځي البته خوشحاله به مو اند ښنه وي ، یا دې به مو ، که یې پرېږدې په ساتنه یې نه ستومانه کېږو .

د رحیم خان کورنۍ وویل :

ــ رحیم خانه ! که ښه کوې نجلۍ مه بېځایه کوه ، اصلي مور او نیا د روسانو ناروایه ترې واخیستل له فرعي خور او مور نه یې ته مه بېلوه ؟ علاوتاً ته یو سړی یې چېرته به یې درسره گرځوې ؟ . . .

رحیم خان ومنله او نجلۍ یې ورپرېښوده له !

# اپرچونست

شاولي چې په ښه بده پوهېدلے وهٔ داېې منلي وو چې ټول په رايج کاڼي کېږي او د قدرت په خرهٔ سپارهٔ د احترام وړ دي. پخواني آمران کهٔ ښهٔ خلك وو کهٔ بد ټولېې يادول دهٔ ته بې لزومه غوندې کار وهٔ ، داېې د مؤرخ وظيفه ګڼله ، دے دومره ساده نهٔ وهٔ چې زړو زنګ وهليو ټورو پيسو ته لکه لرغونو پوه ټر مروجو پيسو په درنه سترګه وګوري ؛ دے د وخت زوی وهٔ او د وخت په رحم و کرم پورې يې خپلې هيلې غوټه کولې....

شاولي لږ ډېر لوستے هم وهٔ ، هميشه بهٔ يې د وخت د زورورو هر راز اعمال ښهٔ توجيه کول ، دهٔ ته د کلي خان او ملك تر هرچا هوښيار او د خير خلك ښکارېدل ځکه به مدام د دوی په کوټه ولاړ وهٔ ، کهٔ څهٔ هم د دهٔ لويو دربارونو ته لاره نهٔ وه . چې کله به ښار ته تللے وهٔ او په ځينو دفترونو کښې به يې کار بند وهٔ ، د وړو مامورينو لويول او غټول يې هم ضروري امر بالله . د زور او قدرت بوتانو ته سرکوزے

(ورو ورو د دهٔ غریزه وګرځېده) د ومره د اقتدار د خاوندانو معتقد شو حې د ناليدليو غيبانو پهٔ تعريف به هم نهٔ مرېدهٔ (البته د ژونديو) . دا يې استدلال وهٔ چې کلې پهٔ نامهٔ د لوی خوی تر نورو ښهٔ لری او خدای پاك چې چاته استعداد نهٔ وی ورکړے واك هم نهٔ ورکوی . . . .

شاولی ډېر ډارن وهٔ او ممکن د غه قدرت پرستی به يې هم د ډار زېږنده وه . دهٔ ته د غه لهٔ ډاره ناشی او د کهتری لهٔ احساسه راپيدا شوے احتياط او يې موجبه غوره مالی د هوښيارۍ او درايت نتيجه ښکارېده ، د دهٔ خولهٔ به د هغهٔ چا پهٔ صفتونو ستړې شوه چې هغه تر مرګه هم پهٔ دې نهٔ خبرېدهٔ چې د شاولی غوندې يو کلك ملاتړ او معتقد هم لری .

کله چې د خلقيانو اله ګوله کامیابه شوه او ډېر يې تجربې او يې تعليمه زلمی يې د قدرت پهٔ لويو کرسيو کښېنول شاولی خوار هم يې لهٔ دې چې عواقب يې وسنجوی خپل مزمن مرض د هغوی مداحی او ملاتړ ته مجبور کړ ، د هغوی هر نامعقوليت او هر ظلم او جنايت ته به يې منطقی استدلال پيدا کاوهٔ ناخواسته يې پهٔ اتڼ ورګډ شوے وهٔ او د هر مارش پهٔ سر کښې به يې پهٔ شعارونو غاړې ولويدې ؛ کهٔ څهٔ هم د ے عقيدتاً ملحد او کمونست نهٔ و خو د عادت لهٔ مخې يې د دوی ويل او کول غوره ګڼل او پهٔ تېروتنې يې د بطلان کرښې ايستلې .

اپرچونیزم بد مرض دے خدای پاك دې څوك پرې نه مبتلا کوی ، په دې رنځ مبتلا مجبور وی چې همېشه به ځان د حالاتو سره عیاروی ، ویل ،کول او منل به وقتاً فوقتاً بدلوی او د حالاتو پښې به یې هره ورځ ذهناً له سره تکوی ؛ تر پرونه په کلی کښې د خان صاحب ، ملك صاحب او ملا صاحب معتقد او اخلاصمند شاولی بې بنه بې بده د هغوی د ښمن شو داځکه چې نور د وخت حاکمانو د هغوی له دوستۍ لاس اخیستې وُ بلکې درجه یك غلیان یې کښل .

څو شاولی د وخت په حاکم ځان پېژاندهٔ خلقی ضد روحیې عمومی قیام پیل کړ او د"الله اکبر" په نارو یې د دهٔ د زړهٔ برجونه ونړول نور یې په کلی کښې دشپې تېرول ځان ته له خطره خالی نهٔ کښله ښار ته یې ولېښل ، د عمومی پاڅون له امله د ښارونو امنیت هم د دوی لپاره ورځ په ورځ له منځه په تلو وُ ، مجبور شو چې "کابل" ته ولاړ شی او څو وخته په ناپېژندویه محیط کښې د شرایطو څارنه وکړی .

په کابل کښې هم خپل خصلت ارام ته نهٔ پرېښوده چې د روسانو یې شمېره تېنګونه به یې ولېدل په دې به باوری شو چې دا پولادی کلاکانې قابل تسخیر نهٔ دی، د"خلق"د کوند تعریفونه به یې کول او د روسانو راتګ به یې ور کار باله .

په دې پسې به دهٔ سر نهٔ کرځاوهٔ چې مخاطب مې څوك

دے ؟ پېژندوی دے که نا پېژندوی ؟ په هغه به بنه لګېږي که بده ؟ . . .

دے خپل مرض مجبور کړے وه، د سازش کارے او اپرچونستي مزمن مرض. خو چې بیا به خبر شو چې مجاهدینو فلانی ځای کښې غلیم ته د ومره تلفات ور اړولي دی او فلانے ځای یې ازاد کړے دے، یا مثلاً په دوه ریښا ورځ نن په کابل کښې دننه په میرویس میدان کښې یو د وه تنه "پرچمیان" ترور شوی دی، یا یې له مکرو ریانو څوك ژوندی بیولي . . . د ده د تبلیغاتو اړخ به هم بدل شوے و، او د مجاهدینو د مېړانې او شجاعت کیسې به یې تشریح کولې .

شاولي په درست عمر کښې د ومره نه وه مترډد شوے په یوه وخت کښې یې د وه متضاد قدرتونه پخپل ماحول کښې نه وو لیدلی . ژوندون سړے له ډېرو عجیبو واقعاتو سره مخامخ کوی ، دے هم اوس له داسې یوې سختې معضلې سره مخامخ شوے وه ، نه پوهېده چې کوم اړخ ونیسی او د کوم قدرت مداح شی ؟ لنډه ډیره یې پرېښودله داسې چې د ځپېدلیو برېتونو سرونه یې ترې راوتلی وو ؛ یعنې ډیره یې له مجاهدینو سره د خه همنوایی په خیال او برېتونه د خلقیانو په تقلید . یو وخت یې ضرورت پېښ شو چې "جلال اباد" ته ولاړ شی ، هغه هم داسې وختونه وو چې په لاره به اکثر د مجاهدینو کنترول وه . چې موټر لږ څه له "یکه توته" ورتېر

شو د یوهٔ شمېر مسلحو کسانو له خوا ودرول شو ، مسلح کسان په ملي جامو پټ وو ، شاولي ومنله چې مجاهدین دی . کله چې مسلح کسان موټر ته راوختل او مسافرین یې وځیرل ، شاولي د خپل طبیعت په لمسه ورته وویل : بې غمه اوسئ په موټر کښې یو بې لارې شوی هم نشته ، درست مومنان دی . یوهٔ تن وپوښتل : ته په څه فکر کښې یې ؟ دهٔ ورته وویل : زهٔ الحمد لله مسلمان یم ، خدای مې دې نهٔ خلقي کوی . مسلحو کسانو څو لغتې وواههٔ او چې له موټره یې د راکوزولو په نیت شول نورو مسافرو ورته وویل : ساده سړے دے له چاره یې درته وویل ، کهٔ نه نهٔ په جنګونو کار لری نهٔ له چا سره رابطه ، دهٔ د باغیانو ګومان دربانديې وکړ . پرچمیانو له وهلو وروسته په توبه پرېښود . چې موټر د غرونو لمنې ته ورسید ، بیا د یوې ډلې مسلحو افرادو له خوا ودرول شو ؛ دے دا ځل پخپل زعم هوښیار شوے وُ ، ورته یې وویل : درست مسافرین د خلقي نظام ملاتړ دی ، په موټر کښې څوک اشرار نشته ، بې غمه اوسئ ! . . . مسلحو زلمیانو هم څو سوکه وواههٔ او له موټره یې کوز کړ ، بیا نور تر مخه شول او د دهٔ د لومړنۍ ځل کیسه یې ورته وکړه ؛ مجاهدینو هم توبه پرې وایستله او خوشې یې کړ . چې بېرته موټر ته راوخوت ملګرو ورته وویل : په تا څه بلا شوې ده چې ځان په لوی لاس مرګ ته ورکوې ؟ دهٔ ورته وویل : زهٔ څه خبر وم

چې دا څوك دی ؟ ما خو اوريدلی وو چې خلقيان او پرچميان په ځړپيدليو برېښونو او مجاهدين په څخو او ږيرو پېژندل کېږي دا خو د واړو ځايه يو وږ وو ، سړی نه پوهېږی چې څه ووايي ؟ يوه هوښيار سړي ورته وويل : هغه څه وايه چې عقل او وجدان يې درسره مني ، که داسې زړه نه لرې "شيخ فريد" پټه خوله دې بهتري ده"؛ له بې ځايه چاپلوسۍ او اپرچونستۍ څه نه جوړېږي .

په دريم ځای کښې چې موږ ودرول شو شاولي خلاف-معمول پټه خوله ؤ ، داسې پټه خوله چې حتی د پوښتونکيو پوښتنې ته يې هم ځواب نه ورکاوه . د دريم ځل لپاره يې وهل وخوړل او بيا هم نورو د ګونګي په نامه ترې خلاص کړ . نه پوهېږم چې شاولي به ګونګه روژه ترکله نيولې وي ؟!

# د تاریخ کنده

بابه خیرو ساده سړی ؤ ، د زماني په پېچمو نه پوهېده سپین ماډین بنیادم ؤ ، نوم به یې خیرالدین یا خیرالله و خو له ځوانۍ په "خیرو" مشهور شوی ؤ چې په سر او ږیره کښې یې سپینو وېښتو په تورو بری وموند د چم ګاونډ ځوانانو به "بابه خیرو" باله .

بابه یې عمله لوی شوی او ځوانۍ یې د چرګانو ، زرکانو او کرکانو په ساتلو او جنګولو تېره کړې وه ، یو نیم ډک چیلم به هم د ښې ځوانۍ له خصوصیاتو ورته ښکارېده په سپینه ږیره یې نړیوږ اکانو له کشرانو سره جوړه وه او د مشرانو په ټول کښې یې ځای نه درلود ، ډېر به خوښ ؤ چې مازیګر مهال د خپل مست زرک قفس په لاس کښې نیولی او پارک ته کوږ وږ روان وی .

ځوانان هم له ده سره خوښ وو ، یو یې ډېرې خاطرې لرلې بل یې په سپین ږیریو کښې یو د ځوان زړه خاوند او

د ځوانۍ د بېباکيو ملاتړ بوللي ليد چې د دوی چارو ته يې
په سپکه سترګه نه کتل ، بلکې يو ګام به لا تر دوی مخ ته روان ؤ ·

د بابه خيرو زامن هم د دغو نوندې بې تعليمه او بې تربيې
لوی شوی وو ، چې کله د خلقيانو حکومت شو او ځوانی اعتبارات
له منځه لاړل ، درانه سپك او سپك درانه شول، د بابه خيرو
زامنو هم پخپلو برېتونو لاس وواهه او د ځان وړاندې ګولو
په لټه کښې شول . څرنګه چې د"خلق" حزب غړي همېشه دا
شان زلميانو ته خلاصه وه ، دوی يې هم بې ښه بې بده
په سازمان کښې ومنل ، بابه خيرو هم د زامنو په سياسی
منډو په تېر عمر د ځوانۍ احساس کاوه او ويل به يې چې
خدای پاك د "زلېخا" ځوانی راپه برخه کړه او د خلق د حکومت
جوړيدو برته ځوارلس کلن ځوان کړم ، څه شول هغه په ځان
غاوره مشران چې زه به يې د زرکانو کرکانو په ساتنه هم ترټلم
او دوی ته هرڅه روا وو ؟ . . .

د بابه زامنو په سازمان کښې ځينې نوی نوری زده کړې وو
چې د بابه خيرو به وړباندې ډېره ساه سه وه او هسکه غړه به
يې وړه ·

يوه ورځ بابه خيرو ولايتی کمېټې ته تللی ؤ ، هلته يې
له سادګۍ د ځينو بنديانو پوښتنه کړې وه چې څه شول ؟هغوی
ورته ويلی وو چې د تاريخ کندې ته ولويدل . بابه ته چې د تاريخ
کنده نه وه معلومه په مطلب نه ؤ پوه شوی خو په ځان

یې نهٔ راوړه، چې ګڼاله ته راغئ، مابښام یې لهٔ خپله زویه پوښتنه وکړه، هغهٔ ورته ووېل: یعنې ووژل شول.

بابه داسې وپښېله چې په خلقي ژبه د تاریخ کندې ته لوېدل د وژلو په ځای استعمالېږي؛ دا جمله یې هم ښه زده کړه، چې څوك به لهٔ هرې خوا وژل شوٌ دهٔ به وېل د تاریخ کندې ته وغورځېدهٔ.

بابه خیرو هڅه کوله چې انقلابي ژبه زده کړي او د یوهٔ کامل عیاره خلقي په څېر وپېژندل شي؛ چې کله به یې زړك د چا له زړك سره جوړه کړ، دهٔ به وېل: وګورئ! زما زړك په انقلابي روحیه جنګېږي، ارتجاع نهٔ منی، دښمن ته مترقي دیکې ورکوي؛ چې زړك به یې مقابل لوري ته ښه دیکه ورکړه، یې اختیاره به یې د"هورا" ناره لهٔ خولې ووتله او وبه یې وېل: د تاریخ کندې ته یې کړه!

بابه خیرو په نورڅهٔ نهٔ وُ خبر، دومره پوهېدو چې د خلق حکومت د خوارانو غریبانو پاچاهي ده، نور څوك چاته نهٔ شي وېلې چې داسې مهٔ کوه او هغسې نهٔ ښایي . . .

د دهٔ ساده زړهٔ دا نهٔ منله چې د پردیو نوکران او د دین او وطن علیمان په ګډه ناست دي او هرڅهٔ د بل په لمسه او د نورو په ګټه بدلول غواړي؛ کهٔ نه دومره لا د ټیټ ذهن خاوند او بې ایمانه بنیادم نهٔ و چې په سپینه بړیره به یې د غلامۍ زندۍ غاړې ته اچوله او پخپلو معتقداتو به یې د بطلان کرښه راایستله.

بابه خیرو ته د بیا ځوانیدو احساس تر دېره پاتې نهٔ شو یوه ورځ یې زوی د نورو ملېشه ګانو په راس کښې جنګ ته ولېږل

شو، په جنګ کښې ولګېد او په لرې درو کښې يې غوښې وريو
ټپوسانو په برخه شوې ؛ چې کله مات شوے لښکر بېرته راستون
شو، د بابه خېرو زوی د نورو ډېرو په اصطلاح سرتېريو سره
د تل لپاره هلته پاتې شوے ؤ . د کلي کوڅې خلک چې خبر
شول ، بابه خېرو ته له مجبوريته د لاس پورته کولو په نيت
راغونډ شول . يوه سپين ږيري له دعا وروسته وپوښت :

– زوی دې چېرته ووژل شو ؟

– ده وويل : انقلابي ځوان ته څوک داسې نه وايي چې چېرته
ووژل شو ؟! داسې وايه چې د تاريخ کومې کندې ته پرېوت ؟
– هغه بيا وپوښت : آيا مړے يې د راوړلو نه ؤ ، که څرنګه ؟
ده ورته وويل :
– د ومره خبر شوم چې د تاريخ کندې ته لوېدلے دے ، نور نه
يم خبر چې د ده د تاريخ کنده به په کومو خوړونو کښې وي ؟



# SERA GHALEY

(RED CARPET)

Collection of Short Stories




1985

Mohammad Seddiq Pasarley




دوفادخپرونوسلسله